# ځرک



اوولسم کال، پنځمه، پرلپسې ۱۲۴مه ګـڼه،
جوزا – سرطان ۱۴۰۰ل، ذي الحجة ۱۴۴۲هــ ق، جون – جولای ۲۰۲۱م




د اسلامي امارت مرستیال او د نظامي کمېسیون عمومي مسؤل

## محترم مولوي محمد یعقوب مجاهد:

مجاهدینو ورونو! په مفتوحه ولایتونو او سیمو کې د امنیت تأمینول، دولتي شتمنۍ تأسیسات او د ولس د سرمایو ساتنه ستاسې دنده او مکلفیت ده.

دهیواد مشهور جهادي شخصیت شیخ القران والحدیث

## مولانا عبد الحکیم شرعي:

د حق غلبه "محض" د الله په نصرت سره راځي، د الله تعالی نصرت د امیر اطاعت او دنیت اصلاح غواړي، هرکار چې دالله درضا لپاره وي اختلافات پکې نه پیدا کیږي.

په ختیځه حوزه کې د تعلیم وتربیې کمېسیون مسؤل

## مولوي فیض الله حقاني:

په مفتوحه ولایاتو او مناطقو کې پر تعلیمي بهیر او پر تعلیمي ادارو هیڅ ډول بندیزونه او محدودیتونه نشته.

## د کندهار والي محترم حاجي وفا:

درنو مجاهدینو! مونږ او تاسې باید د الله تعالی ډیر حمدونه او شکرونه اداء کړو، د تکبر، ځان ښودنې، زشت برخورد او انتقام جویي څخه په کلکه پرهیز او ډډه وکړو.



- له پکتیا تر لوګره د بریاو په وزرو کې!
- امریکا دې! پخواني اشتباهات نه تکرار وي!
- غني او د ولسوالیو له تأسیساتو سره دښمني
- عامه شتمنۍ ولې او څوک ورانوي؟

## د کابل رژیم شپږ میاشتنۍ جنګي پلان تس نس شو!





## طالبه! د سترې فتحې

## د ساتلو د ستر مسئولیت نه غافل نه شې!






علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

# ځرک

اوولسم کال، پنځمه، پرلپسې۱۲۴مه ګڼه،
جوزا - سرطان۱۴۰۰ل، ذي الحجة۱۴۴۲هـ ق، جون-جولای۲۰۲۱م

امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلدارې |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلدارې |

یادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :
srak_111@yahoo.com

## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم



سرمقاله

# دکابل رژیم شپږ میاشتینی جنګي پلان تس نس شو !

د کابل ادارې مشر په دې ورستیوکې دیوه تبلیغاتي حربي اوکاذب امید په توګه هره غونډه کې ویل چې په شپږو میاشتو کې دننه به د افغانستان نظامي وضعیت په خپله ګټه تمام کړي‌او د اسلامي امارت د پرمختګونو مخه به ډب کړي. د دې لپاره چې د شپږو نورو میاشتو لپاره خپل عسکر جنګېدو ته قانع کړي، وعده به یې ورسره کوله چې تر مرګ وروسته به یې کورنۍ ته نمره ورکړل شي او کوځې به یې په نامه شي.

د نوموړي د دې مبالغه آمیزو ویناوو او غولوونکو وعدو لا میاشت نه ده پوره شوې چې د اسلامي امارت د پرمختګونو ساحه تر پخوا څو چنده پراخه شوه. د اسلامي امارت مجاهدینو وکولای شول په فتحه شوو ۲۵۰ ولسوالیو سربیره دیوې اونۍ په ترڅ کې دنیمروز، شبرغان، تخار، کندوز، سمنګان ولایتونه په بشپړډول فتحه او دنیږدې لسوولایتونومراکزکلک محاصره اوکلابندکړي

د خوښۍ خبره دا ده چې د کابل ادارې نظامي منسوبینو اوس حقیقت درک کړی، پوهیږي چې څو زره معاش، یوه نمره او د کوځې په نوم کېدل په دې نه ارزي چې سړی دې د دنیا او آخرت تباهي ته اوږه ورکړي او د خپلې کورنۍ ترځنګ دې د نورو هېوادوالو کورنۍ هم د ویر پر ټغر کښېنوي. په فتحه شویو مراکزو کې د کابل ادارې سلګونه عسکر، پولیس او اربکیان له مجاهدینو سره یوځای شوي او دا سلسله لا هم روانه ده.

له بده مرغه، کوم ولایتي‌مرکزونه چې د اسلامي امارت مجاهدینو نیولي، پر هغوی باندې د کابل رژیم الوتکې بې رحمانه بمباری کوي چې له امله یې ملکي وګړو ته د سرومال درانه زیانونه اوښتي دي. اوس ښارونه د اسلامي امارت په عملیاتو کې نه، بلکې د کابل ادارې او یرغلګرو په هغو هوایي او توپچي بریدونوزیان وینې ترڅوعام خلک تنګ کړي او دامارت دروانوفتوحاتوپه باب دولس خوشبیني اخلال کړي.

نظامي حل ته اقدام کول د اسلامي امارت انتخاب نه و، خو تر هغه وروسته یې نظامي اقدامات پراخ کړل چې د کابل ادارې مشر د مذاکراتو د چټکولو پرځای د جګړې د ژبغړانده کولو خبره وکړه او دملیشه سازۍ او خیزش په نامه یې پخوانیومفسدینوته موقع ورکړه ترڅوولس یوځل بیا دانارشیزم خواته بوزي

اسلامي امارت د کابل ادارې ته وریادوي چې د جنګ له لارې په تېرو شلو کلونو کې د خپلو لسګونو زرو بهرنیو ملاتړو په مرسته بریالي نه شوئ، نو د هغوی تر وتلو وروسته په شپږو میاشتو کې خو د بریا تصور یوازې خیال او جنون دی.

اسلامي امارت کابل ادارې او نړیوالو ته وریادوي چې موږ د مذاکراتو او نظامي اقداماتو دواړو لپاره چمتو یو. انتخاب ستاسې په لاس کې دی. ښه به وي چې تاسې مسالمت آمیزه لاره غوره کړئ او په اخلاص د مذاکراتو مېز ته راوړاندې شئ - خو که د جګړې د انتخاب په فکر کې یاست، نو په درو ورځو کې د پنځو ولایتي مراکزو په سقوط کې ستاسې لپاره د عبرت ډېر درسونه پراته دي.




# طالبه! د سترې فتحې

## د ساتلو د ستر مسئولیت نه غافل نه شې!

د روسانو د یرغل پر مهال عام فکر همدا و چې د منځنۍ آسیا د هېوادونو په څېر افغانستان هم د تل لپاره روسانو قبضه کړ.

ددې لوی نظامي ځواک په مقابل کې چې زموږ مشران د جهاد عملي ډګر ته راوتل نو هدف د الله تعالی د حکم پوره کول او د خپل شرعي مسئولیت ادا کول و. خپل کم شمېر او کمزورو وسایلو ته په پام سره به زموږ مشرانو دا فکر نه کاوه چې ګینې ژر به د هېواد په ازادولو وتوانېږو، د وارسا ماتېدل او د شوروي اتحاد ټوټه ټوټه کېدل خو ډېره لرې خبره وه؛ خو چې څه اسماني پرېکړه وه هغه وشوه؛ د جهاد ډګر کې د افغانانو د سترو قربانیو په برکت وطن ازاد شو؛ د وارسا تړون هم ولاړ او شوروي اتحاد هم ټوټه ټوټه او له خېټې یې د ازادو هېوادونو په صفت ګڼ هېوادونه راووتل.

هغه ټوله نړۍ خوندي شوه چې شوروي اتحاد یې له ستوني نه د تېرولو اراده کړې وه.

هغه هېوادونه هم په امن کې شول کوم چې دلته د شوروي اتحاد د شتون له امله د بد امنۍ او ګډوډۍ د لوی خطر سره مخامخ وو.

دا ډېره عظیمه فتحه وه چې د سرونو په ډېرې لویې قربانۍ ترلاسه شوې وه؛ دې فتحې یو ځل بیا افغان ولس د نړۍ لوی فاتح ولس ګرځولی و خو متأسفانه چې دا ستره فتحه موږ ونه شوه ساتلای او ګټلې فتحه مو د یو څو ماده پرستو او چوکۍ پرستو د هوس نه قربان شوه؛ او نه یواځې دا چې فتحه مو ونه شوه ساتلای بلکې د تنظیمونو د خپلمنځي جنګونو او پکې د سترې بربادۍ سره د هېواد دمخامخ کېدلو له امله جهاد، مجاهد، مهاجر او ټول دین دوسته خلک هم بدنام شول.

۲۰ کاله وړاندې چې زموږ پر هېواد د امریکا په مشرۍ کې د انساني تاریخ تر ټولو ستر عسکري اتحاد یر غل وکړ افغان مجاهد ولس یې په مقابل کې په تېرې شل کلنې مبارزې کې ډېرې سترې قربانۍ ورکړې چې په برکت یې الله تعالی دا ستر اتحاد د شرمېدلې ماتې سره مخامخ کړ؛ موږ ته الله تعالی ستره فتحه نصیب او موږ یې د ۲۱مې پېړۍ د پیل تر ټولو ستر فاتح ولس وکرځولو. زموږ اوسنۍ فتحه زموږ له تېرو ټولو فتحو ستره ده ځکه چې زموږ په مقابل کې اوسنی عسکري ځواک ډېر ستر دی.

دا سمه ده چې موږ افغانان د تاریخ په اوږدو کې تل له خپل ځان نه د لویو مادي طاقتونو پر ضد جنګېدلي یو او الله تعالی راته فتحې په نصیب کړیدي خو موږ په خپل تاریخ کې کله د دومره ستر نظامي ځواک سره نه یو مخامخ شوي لکه اوس چې ورسره مخامخ شو.

بلکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارک دور پرته به په ټول انساني تاریخ کې هم کله د شمېر او وسایلو په لحاظ دومره کوچنی ځواک د دومره ستر عسکري اتحاد مقابلې ته نه وي راوتی او نه به فاتح شوی وي لکه اوس چې د کمزورو وسایلو لرونکي کم شمېر افغانان د دومره ستر عسکري اتحاد مقابلې ته راوتل او الله تعالی فاتحان کړل.

نو زموږ په لاس د تاریخ د تر ټولو ستر اتحاد ماتېدل زموږ ډېره ستره فتحه ده.

او دا ستره فتحه څه په اسانه نده تر لاسه شوې بلکې دوه لسیزې مو د دښمن پر ضد اوږد جنگ کړی چې مو پکې په لسگونو زره ځوانانو د خپلو سرونو قربانۍ ورکړي، ښه کېږي: د زماني بدنامو زندانونو ته لاړل او پکې د سختو وحشتونو سره مخامخ شول؛ د ولس قتل عام مو وشو او خورا ستر مالي تاوانونه ور ورسېدل.

دا ستره فتحه چې په سترو قربانیو ترلاسه شویده پرې د الله تعالی شکر ویستل، ورته د قدر په نظر کتل؛ د ساتنې لپاره یې ښې ډېرې هڅې کول او عالي اهدافو ته یې ځان رسول زموږ د ټول ملت ستر مسئولیت دی.

دا ستره فتحه مو چې لویه لاسته راوړنه ده او په اسانه نده ترلاسه شوې بلکې سترې قربانۍ، زیاتې خوارۍ او خپل رب ته ډېرې زارۍ یې وغوښتې.

د فتحې ساتل به مو هم ستره لاسته راوړنه وي او سترې قربانۍ، ښې زیاتې خوارۍ او الله تعالی ته عاجزي او زیاتې زارۍ به غواړي.

موږ له ټولو مشرانو او خصوصاً له امیرالمؤمنین نه دا توصیه زیاته اورو چې گورئ! د غرور ښکار نه شئ!

دا ډېره مهمه توصیه ده او پرې د عمل کولو ډېره اړتیا ده.

پدې ټول پوهېږو چې الله تعالی په لویۍ او غرور سخت ناراضه کېږي؛ غرور داسې بد مرض دی چې فتحې په شکستونو بدلوي.

نو زړونو تهددې نصیحت د کوزولو ډېره لویه اړتیا ده. ډېر پام پکار دی چې ځانونو ته ددې لویو فتحو نسبتونه ونکړو او په جدي ډول له داسې خبرو نه ځانونه وساتو چې موږ د جنگ ډگر کې ستر دښمن مات کړ، موږ د دښمن نه د ډیپلوماسۍ میدان وگاټه، موږ د مذاکراتو پر مېز پر دښمن بریمن شولو، موږ پر دښمن ملا ماتونکي گوزارونه وکړل، موږ له دښمن لار ورکه کړه، موږ دښمن تېښتې ته اړ کړ او داسې نور.

دا فکر هم ندی پکار چې گینې موږ داسې فاتحین شولو چې بیا به مو نه څوک مات کړي او نه به مو مقابلې ته را ووځي.

که په ښکاره اوس هیڅ داسې تنظیم، حرکت یا خوځښت نشته چې زموږ مقابله وکړي او حالات راته خراب کړي خو موږ باید هیڅ دا ونه وایو او نه دا فکر وکړو چې نور نو داسې څوک نشته چې زموږ مقابله وکړي او یا راته حالات خراب کړي؛ څوک چې په خپل زور نازېږي هغه د ډېر کوچني دښمن په لاس وهل خوري؛ کمزوري مخالفین هم ورته سترې بلاوې جوړېږي او ورته سترې ستونزې را ولاړوي.

دا هم مهمه ده چې کوم هېوادوال راته اغیارو دښمنان کړیدي که دوستان یې نه شو گرځولی نولږ تر لږه چې دښمني یې ختمه کړو ددې لپاره ډېرې هڅې پکار دي؛ که پرې وتوانېدو دا به مو لویه لاسته راوړنه وي.

پر مظلوم او ځوربدلي ولس ترحم او شفقت ته ډېره اړتیا ده.

له ۴۰ کلونو راهیسې د جنگونو ناخوالو کې ډوب ملت له بل هر څه نه ناهیلی دی؛ د امېد سترگې یې زموږ پر لور دي نو باید نا هیلي یې نکړو.

موږ چې د جوماتونو امامان او د درسونو استاذان یو خلک مو ډېر احترام او خدمت کوي؛ باید پدې پوه شو چې موږ سیاست ته را ووتلو، کبری امامت مو په نصیب شو او دولتي مسئولیتونه راکړل شول نو زموږ مخدومتوب ختم شو؛ موږ نور خادمان شولو؛ نور نو د ولس خدمت ته سمه اوږه ورکول او پر ځان شپه او ورځ یوه کول زموږ مسئولیت دی او د همدې پورې مو کامیابي تړلې ده.

تېرو ۲۰ کلونو کې هېواد ته زختې زیاتې پیسې راغلې دي خو لوټمارانو لوټ کړیدي او د ولس د خیر ښېگڼې لپاره یې تری شاید ۵ سلنه هم نه وي لگولې.

که زموږ په لاس الله تعالی هېواد ته امن راولي پدې به د ولس لوی ارمان پوره شي خو یواځې په همدې امنیت راوستلو زموږ مسئولیت نه ادا کېږي؛ ولس ته د ښوونې او روزنې؛ روغتیا، کرهنې او مالدارۍ، اقتصاد، بیا رغونې او د عامه خدمتونو په نورو برخو کې د ډېر لوی خدمت اړتیا ده، او د خدمت کولو ډېره لویه ساحه او وسیع میدان موږ ته الله تعالی راکړیدی. هېواد مو د سیمې په سطحه ښې زېرمې او ښه ستراتیژیک موقعیت لري؛ چې امن راشي دلته به ډېره ستره پانگونه وشي؛ ډېر ژر به په اقتصادي لحاظ مخ په وړاندې ولاړ شي؛ د هېواد خپل عواید هم څه کم ندي؛ نو د خدمت لپاره به د وسایلو هیڅ کمی نه وي؛ چې دا وسایل په سمه توگه وکارول شي او موږ د وطن خدمت ته ملا وتړو په

کم وخت کې به مو وطن گل گلزار شي، موږ به هم په ولس کې محبوب شو، بیا مو که پرضد په نړۍ کې د دښمنانو له لورې هر ډول تبلیغات کېږي تاوان به یې نه رارسېږي.

که په غور وکتل شي د ایران انقلابیانو ډېره لویه توره نده کړې او نه یې د انقلاب راوستلو لپاره څه ډېرې سترې قربانۍ ورکړیدي؛ نه یې د کوم ستر زبرځواک پرضد جنگ کړی، نه یې کوم بهرني سترځواک ته شکست ورکړی او نه یې هم د کوم قابض قوت نه خپل هېواد ازاد کړی بس د یو نا اهل حاکم پر ضد یې قیام کړی او پکې کامیاب شویدي خو د انقلاب اخوندانو دا هوښیاري وکړه چې د خپل انقلاب د ستر ښودلو لپاره یې ډېر تبلیغات وکړل او د خپل بریالیتوب د ساتلو لپاره یې د ولس ښه خدمت وکړ نو نن ۴۰ کلونه پس هم څه د پاسه ۷۲ سلنه ایرانیان د ابراهیم رئیسي- په نوم یو اخوند ته رایې ورکوي.

موږ خو الحمد لله ډېره لویه توره کړېده؛ له امیرالمؤمنین نه تر عام طالب پورې مو د سرونو ډېره لویه قرباني ورکړېده؛ د انساني تاریخ تر ټولو ستر زبرځواک ته مو ماتې ورکړېده؛ په نړۍ کې مو خپل ملت ډېر سرلوړی کړی او د یو ستر قابض ځواک نه مو هېواد ته ستره آزادي راوړې ده؛ خپل ولس مو په ټولې نړۍ کې د ۲۱ مې پېړۍ د پیل ستر فاتح ولس وگرځاوه نو که مو وطن وطن گڼلو؛ د وطن لوښت لوښت راته اهمیت درلودلو ورسره مو د خپل شخصي کور او جایداد نه زیاته مینه کوله؛ راسره یې د آبادولو غم و؛ ځانونه مو د وطن مالکان گڼل؛ له لوښت لوښت نه د دفاع فریضې ادا کولو ته ژمن وو؛ بهرنۍ او کورنۍ تگلاره مو په اصولو برابره وه؛ واک مو ترخپلو ځانونو نه و محدود کړی بلکې د هر سمت، هر قوم، او هرې ژبې خلکو خپل ځانونه په واک کې لیدل او د قوم، سمت او ژبې په حیث چا د محرومۍ احساس نه کاوه.

حکومت دارۍ کې مو د اداري فساد مخه ونیوله او د ترحم او شفقت ترځنگ مو رعیت ته قدر هم ورکړ نو ولس بیا زموږ دی هیڅکله به رانه پردی نه شي. چې ولس مو تر څنگ ولاړ وي او له منځ نه یې زموږ پرضد مخالفتونه راپورته نه شي نو فتحه به مو هم ساتلې وي؛ د فتحې ثمرات به هم ترلاسه شي؛ د پاک شریعت په نفاذ کې به هم له مشکلاتو سره نه مخامخ کېږو او پدې لار کې به د لویدیځ خنډونه او مخالفتونه هم بې اثره وي. ان شاءالله تعالی.



د تخار ولایت امنیه قومندانۍ د طالبانو تر کنټرول ورو سته



# امریکا دې!

## پخواني اشتباهات نه تکراروي!

ارمان مجاهد

د روان ۲۰۲۱ زکال داګست په ٦مه نېټه د هیواد په جنوب لویدیځه حوزه کې ګاونډي هیواد (ایران) سره په پوله د پروت تاریخي او ټرانزیټي ولایت مرکز( زرنج ښارته) د افغانستان اسلامي امارت قهرمان مجاهدین د فاتحانه تکبیرونو اوسپینو په بدرګه ننوتل او دګوډاګي رژیم واکمنې رنګه کړه، چاړواکو او یو شمیر عسکرو ایران ته په تښتیدو ځانو سره په زیاته نا ځوانمردی یو شمیر ټانګونه،شوبلې، عراده جات، نقلیه وسایط او دګمرک پیسې هم ایرانیان ته ورې دي، تردې پورې چې د اور وژنې( اطفائي) موټرې هم ایرانیانو ته وروستي دي، دیادونې وړده چې د دینه وړاندې د ګوډاګي رژیم چارواکو د هرات د اسلام کلا سرحدي ولسوالی ته هم د طالبانو د ورتګ ځخه وړاندې یو شمیر ټانګونه،نقلیه وسایط ایران ته تښتولي وو اوهم یې د ګمرک پیسې ورې وې، چې دا نه بښونکې خیانتونه او جفاوې به افغانان هیڅکله هم هېرې نکړې او عاملین به یې تاریخ ته تل مخ تورن پاته وي.

زرنج ښارته د طالبانو ننوتو پرمهال دعامو خلکو لخوا دهغوی شاندار هرکلي وشو، د الله اکبر ـ اسلامي امارت زنده باد په نارویې استقبال وشو.

له هغه وروسته چې دوحې تړون په قطرکې لاسلیک شوی او په ترڅ کې یې ډېری امریکایې ځواکونه له افغانستانه ووتل، نیمرزو د هغه لومړني ولایت په توګه درج شو چې د ټولو اړوندو ولسوالیو په ګډون د افغانستان اسلامي امارت تر واک لاندې راغی.

د نیمروز وروسته د۲۰۲۱ زکال په ۷مه نیټه د افغانستان اسلامي امارت مجاهدین د جوزجان ولایت مرکز (شبرغان) ښارته هم د فاتحانه ولولو په بدرګه ورننوتل او په بشپړ ډول یې د دوستمي ګوډاګیو ملیشو ځخه ازاد کړ هم یې د شبرغان د محبس ځخه ٦-٧ سوه شاوخوا بندیان ازاد کړل، د دوستم هغه قصرېې هم ونیو کوم چې هغه د ملت وینو په زبېښلو او بهولو مقابل کې په ترلاسه شویو پیسو جوړ کړی دی.

د شبرغان ښار د فتح سره جوخت مجاهدینو ډیر ژر د تخار مهم ولایت هم فتح کړ،او د تالقانو د تاریخي ښارپه مرکزي چوک یې داسلامي امارت سپین بیرغ رپاند کړ، دتخار ورو سته دوه نور ولایتونه (کندز اوسرپل) په یو وخت کې غبرګ فتح شول او ورڅخه مزدور ځواکونه اوملیشې ووتې. د کندز وروسته یعنې په سباته سمنګان ولایت هم فتح شو او مجاهدین دایبک ښارته فاتحین او غانمین ورننوتل.سمنګان په هغو ولایتونوکې چې داسلامي امارت تربیرغ لاندې قرار لري شپږم مفتوح ولایت درج شو!

څنګه چې دکابل ګوډاګی رژیم نور دومره شړیدلی او لړزیدلی دی چې د ژوند وروستی سلګی یې هم په ختو دي، نوپه مفتوحه ولایتونو باندې دفضا له لارې په بیساري وحشت سره دعامو خلکو په دوکانو، مارکیټونو، پوهنتونو، لیسو، روغتونو، فابریکو، او جوماتونو بمباردونه کوي، په خاصه توګه هلمندکې یې په ډیروحشیانه بمبارد لاس پورې کړ، دخلکو په کورونو یې بمونه وغورځول همدا راز هلمند او کندز دواړوکې یې د صرافی او طیلاوو مارکیټونه په نښه کړل او دعامو خلکو شتمنیوته یې نه جبرانیدونکي زیانونه واړول.

دافغانستان اسلامي امارت ویندوی ښاغلي ذبیح الله مجاهد لخوا داهم ویل شوي دي چې هلمندکې کوم وحشیانه او ظالمانه



د هلمند په مرکز "لښکرګاه" کې د صافیانو پر نوم یو روغتون د امریکایي ځواکونو له بمبار وروسته

بمباردونه شوي دي په هغو کې امريکايان لاس لري او د هغوی لخوا ترسره شوي دي چې دوی پــه کلکــه غنــدي او د دوحــې تــړون څخــه دامریکایانود مکررو تخطیو او سرغړونو دوام يې بولي ښکاره ده ددينه وړاندې هم ځوځله امریکایانو د دوحې تــړون څخــه سرغړونــې کــړې دي او د اسلامي امارت د سياسي چــارو د فــتر لخــوا د بيــا، بيامتوجــه کولو باوجود يې لاس نيولی ندی او خپلې کړې تيروتنــې او اشــتباهات يې په ځلونو تکرارکړي دي چې لــه املــه يــې افغــان ولــس تــه درانــه زيانونه رسيدلي دي او امريکا دې پــه يــاد ولــري چــې د دوی موجوده پالیسۍ به په افغانستان اونړۍ کې دامریکا لپاره ښه عواقب و نلري

داچــې د اللــه تعــالی پــه مرســته او دغيــور ولــس پــه حمايــت دافغانستان اسلامي امارت مجاهدين د نورو ګڼو ولايتونــو د فتحــو پــه درشل ولاړ دي نړیوال، امریکا او ګوډاګيــان دي وفهمــوي چــې افغــان ملت بيدار شوی دی او د اوسني فاسد رژيم څخه په تنګ راغلــی دی هغوی په هرصورت دطالب واکمنې غواړي او د طالب د ورتګ نه ننګه او ملاتړ کوي .

امريكا دې دموجوده فاسد رژيم لــه ملاتــړه لاس واخــلي، دهغــه لپاره دي دافغانانو په کورونو او بازارونو بمونه نه غورځوي افغانان دي خپلې خوښې او خپلې ارادې ته پرېږدي چې هغوی څوک غــواړي؟ او دچا ملاتړيا مخالفت کوي؟ که پــه زور يــا وحشــت سره بــری ترلاســه کيدای تاسو(امريكا) به په تيرو شل کلــوکې ترلاســه کــړی و؟هو!شــل کاله تاسو په هيڅ وحشت او ظلم صرفه ونه کړه نو ولې مو بری ترلاسه نکړ؟ پښتو متل دی« په زور کلي نه کېږي» امريكا دې دګوډاګي دولت دتقويه او تمويلو څخه لاس واخلي اوپه زوره دي نــور دافغانســتان پــه خلکو هغه نــه تحميلــوي همــداراز امريکــا دي دافغانــانو پــه کورنيــو معاملاتوکې دلاسوهنې سیاست پای ته ورسوي، د دوحې په تړون کې کړې ژمنې دې پوره رعايت کړي اوکه په امريكا کې د ځينو جنرلانو او سياســتوالو سره دا برداشــت مــل وي چــې دوی بــه پــه بمــاردونو سره دافغانانو دننه دازادی ولولې زندی کړې نو اشتباه کــوي زکــه دوی پــه شل کلونوکې دبمباردونو هغه کوم ډول دی چې دوی ونکړ؟

نور دې دافغانستان په روانه معضله کــې دځــان ښــکېلولوڅخه ډډه وکړي دافغانستان استقلال او ازادی ته دې احترام وکړي، بس دی ډير افغانان يې وژل، معيوبين يې کړل، بنديان يې کړل دکورونــو څخــه يې وشړل نور دې کړي اشتباهات نه تکراروي پای








خالق یار احمدزی

د صفاري واکمنۍ پلازمینه «زرنج»

# د طالبانو تر قدمونو لاندې راغله

طالبانو د هیواد د یوه ستر مهم او تاریخي ولایت نیمروز مرکز «زرنج» ښار ونیولو؛ دا چې زرنج چیرې دی، تاریخي مخینه یې څومره ده، څومره ارزښت لري او جغرافیه یې څنګه ده، دلته یې تشریح کوو.

نیمروز د افغانستان سویل لویدیځ لوري ته پروت لوی سرحدي ولایت دیچې لویدیځ ته له ایران او سویل ته له پاکستان سره اوږده پوله لري،. ختیځ ته یې هلمند او شمال ته یې د فراه ولایتونه موقعیت لري.

د زرنج ښار د دې ولایت مرکز دی، چې د ولسوالیو په نسبت وړه سیمه ده.

**مخینه:**

د زرنج اصلي نوم "زرنګ" وه، چې د عبدالرحمان ابن سمرة رض په مشرۍ صحابه کرام د اسلام د تبلیغ لپاره له سیستان وروسته دې سیمې ته راغلل.

دنیمروز زرنج ښار دجلیل القدر صحابي عبدالرحمان بن سمرة رضي الله پر لاس په۳۵ هجري کې فتحه شو او په زرنج سربیره یې دکابل تر ښاره ساحات فتحه کړل

د ساسانیانو له ماتې وروسته، دلته د یعقوب بن لیث صفاري په مشرۍ دغه ښار کې د صفاریانو واکمني قایمه شوه، چې تر څه مهلت وروسته یې د تعلیم او تربیې لړۍ پراخه، ځوانان یې ښه وروزل، سیمې یې آبادې کړې او پراخ خدمات یې وړاندې کړل.

ابویوسف یعقوب دلیث صفار زوی دمعدل لمسی دافغانستان هغه میړنی واکمن دی چې په اتمه میلادي پیړۍ کې یې دصفاري دولت بنسټ کیښود.

دصفاریانو پلازمینه زرنج اوس نادعلي په نامه یوه سیمه ده چې دهغه له کنډوالو تر اوسه دیوه برم نښې ښکاري.

د نوموړي دزیږدلو نیټه یې ۸۲۱م کال په شا خوا کې اټکل شوی، نوموړی پخپله ساده جامې اغوستې او ساده خواړه لګه ډوډۍ او پیاوه یې خوړل پرلمخې کیناسته او پر ډال یې ډوډه وهله ۰

دی نړیوال باچا "ملک دنیا" بلل کیده چې شاخوا هېوادونه یې تابع وو، ده سخته پاک لمنې راوسته غلا، دروغ، او حرام خوړل یې منع کړل.

یعقوب لیث د خپل وخت میړنی حکمران وو چې په افغانستان کې یې د لومړي ځل لپاره داسلامي سلطنت بنسټ کیښود او افغانانو ته یې دخپلواکۍ ګټلو داسې درس پریښود چې وروسته بیا افغانانو دده په قدم خپل قدم کیښود او دیوه خپلواک افغانستان په جوړولو بریالي شول.

دی یو زړور، عادل او هوښیار ځواکمن مشر وو، دافغانستان، ایران او ماوراءالنهر یولوی سلطنت یې په ډېر ښه تدبیر ساته، دغزني ښار هم په لومړی ځل دده په سلطنت ابادشو دی.

هغه لومړنی افغان واکمن وو چې د لومړي ځل لپاره یې دافغانستان زیاتره سیمې په یو مرکز پورې وتړلې او خپلواک حکومت یې جوړ کړ.

د نیمروز واکمن "یعقوب" نه یوازې دا چې دافغانستان دولت متمرکز جوړ کړ بلکې دعربي پر ځای یې بیرته دري ژبه




رامیدان ته کړه او دغیر اسلامي مذهبونو په لرې کولو کې یې ډېرې هڅې وکړې.

یعقوب دافغانستان لومړنی واکمن دی، چې داسلامي خلافت پلازمینې دغه نوم دبغداد له خلیفه سره یوځای یاداوه.

وروسته له کلونو واکمنې څخه دغه ښار د تیموري لښکرو لخوا وران او په کنډواله بدل شو.

## د نیمروز جوړښت:

د وروستیو شمېرو له مخې، ددې ولایت نفوس ۱۴۹۰۰۰ زره تنه اټکل شوی او مساحت یې ۴۱۰۰۵ کیلو متر مربع دی. هوا او اقلیم یې په ژمي کې معتدل او په دوبي کې گرم دی.

ددې ولایت ډېرې اوسېدونکي بلوڅان دي، خو پښتانه، تاجک او ازبک هم پکې مېشت دي.

د غیر رسمي سرچینو له مخې، ددې ولایت ۶۱ سلنه بلوڅان، ۲۷ سلنه پښتانه، تاجک او ازبک یې لس سلنه تشکیلوي.

ددې ترڅنگ په دې ولایت کې یو شمېر کوچیان هم مېشت دي.

په دې ولایت کې د هلمند سیند ترڅنگ ځینې نورو سیندونه هم بهیږي، د پراخو کرنیزو ځمکو ترڅنگ د مارگو په نامه لویه دښته هم لري. د گودذرې هامون هم په دې ولایت کې دی.

د زرنج ترڅنگ د چخانسور او چهاربرجک هم ددې ولایت له لویو ښارونو څخه دي.

د نیمروز مساحت زیات، خو نفوس یې کم دی، ډېری برخه یې صحراگانې او دښتې دي، یواځې هغو سیمو کې یې خلک ډېر ژوند کوي، چې د هلمند سیند پرې تېر شوی دی.

## اداري واحدونه:

نیمروز ولایت پنځه ولسوالۍ لري چې دلارام، گنگ، چهاربرجک، چخانسور او خاشرود نومیږي.

طالبانو دا ځل دتېر تاریخ پر پل, پل کیښود. زرنج به دکابل دفتحې دروازه شي بإذن الله



**عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته یو ځوان راوستل شو چې غلا یې کړې وه، ځوان وویل: والله دا مې لومړی ځل غلا ده. عمر رضي الله تعالی عنه ورته وویل: دروغ وایې، په الله قسم چې الله ﷻ بنده په لومړي ځل گناه سره نه سپکوي.**

**( رواه أبو داود في الزهد ۵۴)**

## درواڼو فتوحاتو په اوږدو کې امارت

# خپل ديني او ملي بصيرت په ډاګه کړ!

م ـ همراز

دا معلومه خبره ده چې ګران هيواد افغانستان يو ځل بيا د تاريخ له ډېر نازک پړاو نه تيرېږي.

افغانستان ۴۵ کاله شاوخوا انقلابونو ځپلی هيواد دی، هرکله چې په دې هيواد کې پردي اشغال ګر د ماتې په درشل دريدلي نو په ګران هيواد کې يې ترشا ډيرې ناخوالي ډول ډول توطئې او شوم پلانونه په عملي ډول پرېښي او په نتيجه کې يې تر بل اشغال پورې افغانانو د ارآم سام نه ده ويستلی، خو داځل خبره څه بل ډول ده،

روان اشغال د روس او فرنګ نه مخالف د احزابو د غزا رنګ درلوده، روان اشغال يو نړيوال کفري اشر وو چې د افغانانو دين برم عزت او شتمنۍ له منځه وړولو لپاره يې په ګډه کړی وو!

لکه څنګه چې روان بحران ډير په لويه کچه درونډ او سخت وو نو الله تعالی د مقابلې لپاره هم درانده، متدين، ځيرک، زړور، شجاع، پوهان، علماء او د لويې حوصلې والا خلک انتخاب کړه

په يو متحد صف کې يې شل کاله په ډيره لويه حوصله سنګر او دفتر دواړه په ډير ښه طريقه سره وپالل، او مغرور اشغال ګر يې دې ته مجبور کړل چې د وتلو بهانه ولټوي

که روانو حالاتو ته ځير شو نو دا خبره به جوته شي چې د اسلامي امارت مشرانو ته واقعاً الله تعالی ډير ښه نظامي او سياسي بصيرت ورکړی دی!

ټولې نړۍ وليدل چې امريکانو په وار وار د ميز له خبرو نه سرغړونه وکړه... خو امارت حوصله له لاسه ورنکړه اوفضايي يومخ ترينګلتياته پرينښوده

ترڅو چې دامريکايانو ګوډاګيانوته يې هم موقع ورکړه ترڅودبين الافغاني خبروميزته حاضرشي که څه هم هغوئ مذاکراتوته مخلص او اماده نه وه اونه هم دي

کله چې خارجيانو د ماتې مراسم پيل کړه نو د ګوډاګيانو مورال يې په هر ډګر کې صفر شو، مونږ وينو چې په ډير لږ وخت کې د امارت اسلامي مجاهدينو تقريباً د هيواد ۸۰ فيصده خاوره په ډير حکيمانه ډول تر خپل کنټرول لاندې راوستله ټولو هيوادوالو په ويډيو وي شکل مشاهده کړه چې سلګونه ولسوالۍ بغير له جنګه د امارت اسلامي تر ولکې لاندې راغلې او د تسليم شوو مخاليفينو سره په پوره صميميت د عفوې معامله وشوه.

امارت اسلامي کولی شول چې د اشغال د ماتې نه روسته د جنګ او زور له طريقه په ډير لږ وخت کې ګوډاګې اداره نسکوره کړي.

خو داسې يې ځکه ونه کړه چې د چور چپاول د تأسيساتو د ورانولو او ګډوډۍ مخه ونيول شي لکه څنګه مو مخکې يادونه وکړه چې غلامې اداري خپله حوصله او مورال بايللی دی نو د خپل ځان د ژغورلو لپاره په يو ډول جنايت هم دريغ نه کوي همدا لامل دی چې د اسلامي امارت د جنګ پاليسي ډيره په تدريجي ډول او ډير په احتياط سره مخ په وړاندې ځي!

مونږ وليدل چې اسلامي امارت اول د اطرافو نظم او ضبط برابر کړ او بيا يې د ولسواليو فتحو ته مخه کړه کله يې چې په ولسواليو کې ټول تشکيلات د مشرانو تر نظارت لاندې په عملي بڼه او ښه طريقه ترتيب کړه نو اوس يې د ولاياتو فتحه کولو ته مخه کړه، زما له نظره د اسلامي امارت د تدريجي مختګ دا دوه لامله دي،

يو دا چې په مفتوحه سيمو کې اول ټول ارګانونه او تشکيلات فعال کړي بيا مخ تګ وکړي او بل دا چې د دښمن له خوا د عامه تخريب مخه وه نيول شي او د تسلمۍ په شکل فتوحات پر مخ يو سي، د تير تاريخ نه په عبرت اخيستلو سره د بن د غونډې په څير غونډه هم په ترکيه هيواد کې مسترد شوه.

او مبارزه هم د يو قيادت تر سيورې لاندې روانه ده نو د روانو حالاتو نه داسې معلوميږي چې هيواد به په اينده کې يو ښه قوي په ځان متکي اسلامي امارت ولري ان شاء الله

# غني او د ولسواليو

## له تأسيساتو سره دښمني

قاري حبیب

هره ورځ خبر راځي چې د اشرف غني الوتکو د هیواد د یوې ولسوالۍ په ودانۍ، امنیه قومندانۍ، د زراعت یا معارف په کوم مدیریت، یا روغتون باندې بمبار کړی وي. د بمبار شویو حکومتي تأسیساتو انځورونه او نړیدلی حالت د انسان زړه ته ټکان ورکوي.

په بدخشان کې د ارګو، شهداء او یاوان په ولسوالیو ناترسه بمبارونه وشول. په هلمند کې د ګرشک په ولسوالۍ او لښکرګاه کې روغتون بمبار شو. د لغمان علیشنګ د لوګر ځرخ او نورې ډېرې ولسوالۍ بمبار شوې. تر دې پخوا په طالبانو تور پورې کېده چې حکومتي تأسیساتو ته زیان رسوي. مګر موږ ولیدل چې په تیرو څو میاشتو کې طالبانو د ولسوالیو مراکز په داسې ډول ونیول چې هیڅ ضرر ورته ونه رسید. نه کوم اسناد، فرش و ظرف او نور مواد ورک شول او نه هم ودانۍ زیانمنې شوې.

مګر اشرف غني چې د جګړې او سیاست دواړه ډګره یې بایللي، اوس انتقام له دیوالونو او تعمیرونو اخلي. هره ورځ الوتکې هغه عام المنفعه تأسیسات بمباروي چې د دې هیواد او ولس شتمني ګڼل کیږي. ګټه یې ولس ته رسیږي او تر هیڅ ډلې، شخص او ګوند پورې تړاو نه لري.

که څه هم هر ډول تخریبي عمل ناسم کار دی. مګر تر ټولو ستر خیانت او جفا د هغو شتمنیو له منځه وړل دي چې د ټول ولس مشترک مال ګڼل کیږي. لکه څنګه چې په غلاو کې تر ټولو بده او خطرناکه غلا د بیت المال غلا ده، ځکه چې که له یو شخص څخه غلا وشي، امکان یې شته چې بیا ترې بښنه وغوښتل شي او هغه بښنه وکړي. اما د بیت المال شتمني چې د ټولو مسلمانانو ګډ مال بلل کیږي، که یې څوک غلا کړي نو بیا یې له حقوق العباد څخه د خلاصون او بښنې امکان ځکه نشته، چې له ټول ملت نه فردا فردا څوک بښنه نه شي غوښتلی او نه ټول بښنه کوي.

همدغه راز د عامه شتمنۍ، لکه حکومتي تأسیسات، روغتونونه، ښوونځي، مساجد، مدارس، پلونه او نور ټولګټي ځایونه چې د ولس نر، ښځه، ماشوم او سپین ږیری او د هر قشر خلک په کې مساوي برخه لري. نړول یې خورا ستر جرم او جنایت دی. دا داسې جنایت دی لکه د ملت هر فرد ته چې زیان ورسول شي. زړه یې آزار کړای شي او مالي تاوان ورپیښ کړای شي.

بناء د دې ضرورت دی چې په هر قیمت وي، باید اشرف غني او د کابل اداري چارواکي له دغه تخریبي بمبارونو راوګرځول شي. افغانستان له لویه سره جګړو ځپلی دی. ډېر تاسیسات یې له منځه تللي. اوس چې کوم پاته دي. باید اجازه ورنکړای شي چې اشرف غني یې په قصدي بمبارونو تخریب او په کنډوالو بدل کړي.

د تیرو څو میاشتو په جګړو کې چې څومره حکومتي ودانۍ تخریب شوي دي، ټولې د کابل ادارې الوتکو په بمبارونو کې له منځه وړي دي. په دې سلسله کې فقط یو ځل د فراه د اناردرې ولسوالۍ د امنیه قومنداني ودانۍ چې حکومت غوښتل بیا یې ونیسي- او د سنګر په حیث ترې استفاده وکړي، د محلي مجاهدینو له خوا په خپلسري ډول ونړول شوه. چې په مقابل کې یې تر هر چا وړاندې د اسلامي امارت رسنیزو فعالینو غږ پورته کړ. دغه عمل یې وغنده او اسلامي امارت یې په اړه پلټنې پیل کړې. د کابل ادارې اړوند رسنیزو فعالینو هم د اناردرې موضوع ته دومره هوا ورکړه لکه ټول افغانستان چې نړول شوی وي. څو ورځې په دې اړه تبصرې او تبلیغات روان و. اما اوس چې هره ورځ یوه ولسوالي، روغتون، یا مکتب بمبارېږي او له منځه ځي. هیڅوک یې په اړه غږ نه پورته کوي.

عام المنفعه تأسیسات د یوه هیواد او ملت لپاره خورا ډیر ارزښت لري. لکه موږ چې په فردي ژوند کې کور، کوټې، کلا او نورو ودانیو ته ضرورت لرو. یو ملت او ولس هم کټ مټ همداسې هغو ټولګټو تأسیساتو ته اړتیا لري چې د دوی حکومتي، رفاهي او خدماتي چارې په کې ترسره شي. بناء حکومتي ودانۍ، سرکونه، لارې، پلونه، روغتونونه او نور تأسیسات زموږ هغه ملي شتمنۍ دي چې باید ټول اقشار یې د ځان وبولي او په ګډه یې ساتنه او حفاظت وکړي.

که اشرف غني د عام المنفعه تأسیسات له ویجاړولو لاس نه اخلي، باید په وړاندې ټول ولس راپورته شي، له مجاهدینو سره همکاري تر پخوا زیاته کړي، تر څو هر څومره ژر چې ممکنه وي، دغه تخریبګر واکمن د ظالمانه واک له ګدۍ څخه رانسکور او هیواد یې له اذیت څخه خلاص کړي.

# روانې فتحې عجیب کیف لري!!

م.مخلص

چې روانوفتوحاتو ته سړی ګوري له خوښۍ نه په جامو کې نه ځایېږي؛ خو له بلې خوا په زړه کې یوه نرۍ څړیکه را تیره شي او دا اندېښنه ورسره مل شي، چې ایا موږ به وکولای شو دمعصوموشهیدانو د وینو په برکت تر دې ځایه را رسېدلی نظام په هغه ډول اداره کړو، چې د نړۍ لپاره د یوه اسلامي نظام د ماډل حیثیت غوره کړي.
که څه هم داسلامي امارت باعزم اوپاک قیادت تر دې دمه دجهاد مسیر په ډیراحسن ډول رهبري اودبري په درشل ودراوه
اوس ربښتیاهم ډیر کار، ځیر کتیا اوبصیرت ته ضرورت ده، داسلام غلیمان زمونږ. دبدنامولولپاره په هر میدان اوکمین کې ناست دي کوشش کوي چې زمونږ. هرڅه سرچپه معرفي کړي
کله فکر را پیدا شي، چې هسې نه ددې صف د ځیني طبیعي خرابیو په لیدلو سیکولران زموږ نظام د هر هغه چا پر مخ ور وموښي، څوک چې د اسلامي نظام د قیام لپاره مبارزه کوي؟
د داسې یو چا په حیث چې حتی په لمانځه کې تر خپل ځان وړاندې د نظام دبریا او فلاح دعاګانې غواړي، دنظام جوړوني په باب سخت چورتي یم .
زموږ نظامیانو د صحابه وو رضی الله عنهم د قرن په څېر قربانۍ ورکړې، د نړۍ د پرمختللې ټکنالوژۍ په وړاندې په خالي لاسونو ودرېدل او د بې دوه پنځوس الوتکو غوښې وریتوونکو بارودو ته یې سینې سپر کړې؛ اوس نو دا ازمایښت د صف پر پاتې مشرانو راتلونکی دی، چې هغوی څه ډول بصیرت او فراست نه استفاده کوي، له متدینو پوهانو او دمسلک له مخلصو هستیوپه څه ډول کاراومشوري اخلي
له دې ټولو ها خوا یوه خبره د بیا ځلې تکرار وړ ده، چې زموږ او ستاسو ناکامي د سیاسي اسلام او د یوویشتمې پېړۍ د مسلمانو وسله والو نهضتونو په ناکامۍ او ماتې تعبیرېږي .
یاالله ته زمونږ مخلص قیادت اومشرانو ته داسلامي نظام دجوړولولپاره داسې سینه اوحوصله ورکړي چې دبشارت، ګذشت اویسر په رنګینواستوار وي، دهیواد وحدت خوندي کړی، دولس په زړونودملهم پټۍ کیږدي، دافغانستان دثبات، بیارغوني اوهراړخیزي ترقی لپاره تاریخي ګامونه واخلي اودجنګ او باروتو بوی اومخ ورک کړي.
ددې صف د بریا او فلاح لپاره لپی لپي دعاګانې اوالله ته سوالونه اوعذرونه.






# د چا د وطن مینه شعاري ده؟!

د افغانستان د روانې جګړې طرفین دواړه د وطن د مینې ادعا کوي، طالبانو له اشغالګرو او لـه پـاتې شـونو سره یې د اسلامي نظام او د هیواد د خپلواکۍ لپاره جګړه روانه کړې او کابل اداره (د اشغال له یادونې پرته) د روانې جګړې سوژه یواځې او یواځې د وطن دفاع بولي.

د امریکایانو له وتو سره په دې وروستیو کې چې طالبانو په بې سارې ډول تر دوو سوو پورې ولسوالۍ او ځینې ولایتونه تر خپل حاکمیت لاندې راوستل؛ د نیول شویو ولسوالیو مهمې ودانۍ او تأسیسـات اوس د کابل حکومت له لوري هره ورځ بمبارېږي او لـه منځـه یې وړي، حتی عـام المنفعـه تعمیرونـه، بازارونـه، روغتونونـه، مکتبونه او لیسې د بمبار هدف ګرځوي، سره له دې چې دوی پـه دې هـم ښـه پـوه دي چې طالبـان پـه دولتي ودانیو کې نه اوسي او په دغو بمباریو کې هغوی ځاني تلفات یا نه لري یـا ډېـر کـم دي، خـو بیا هـم د بمبـار پـه وسیله هره ورځ د دغو دولتي تأسیساتو د له منځه وړلو شاهدان یو.

په دې نږدې لنډو ورځو کې د هرات ولایت د چست ولسوالۍ مرکز، دهلمند ولایـت پـه مرکـز لښـکرګاه کې د اریانا افغان روغتون، دصافیانو روغتون، محمدانورخان لیسه او دهلمند دبست پوهنتون، دغـازي آبـاد د تعلیم وتربیې مدیریت، دبدخشان د یاوان ولسوالۍ امنیـه قومانـدانۍ او د بدخشـان ولایـت د ارګـو ولسـوالۍ مرکزونه بمبار اوله منځه یوړل شول.

دلته ده چې دهر چا د هیواد مینه په ښه توګه ثابتېږي او اوس دغه دولتي تأسیسات چې ملي سرمایـه ده په شل کلنو لاسته راوړنو کې نه شمېرل کیږي! هغوی چې دغه ملي سرمایه له طالبانو سره د ضـد لـه املـه لـه منځه وړي؛ په رښتیا هم چې دهیواد دمینې شعارونه یې یواځې تر شعاره پاتـه شـول او ښـکاره شـوه چې دغـه چیغې یې پر قدرت د پاته کېدو لپاره وې اوس یې چې قدرت په خطـر کـې دی د مـلي شـتمنیو پـه شـتون او نـه شتون هیڅ باک نه راوړي اوپه ډېره بې درديۍ سره یې بمباروي، خو هغه مدني فعالان، د بیـان دآزادۍ دعـوه داران او رسنۍ چې د دوی دغه شعاري چیغې به یې حق اونـاحق ورسره بدرګـه کـولې؛ هغـوی ولې چوپـه خولـه دي او هیڅ غږ یې نه پورته کیږي؟

نن خو دې دهماغې هیوادنۍ مینې په پار یو غبږ پورته کړي (وطنه مور یې زموږ) څنګه ژر یې دغه اولادونه ناخلف شول؟! او خپلې مور ته داسې په بدو واوښتل چې ټول لحاظونه یې له پامه وغورځول؟!

په راحت او اسودګي کې خو هرڅوک د دغې مینې اظهار کولای شي چې نمایشي- اوشعاري چیغې جوړې کړي د مور اصیل اولاد خو هغه دی چې په سخته او کړاو کې یې په درد وخوږل شي، دغه حالت او دغه ډول عمل ته په کتو سړی ویلای شي د وطن خواخوږي، اصیل بچیان او اصلي مالکان څوک دي؟!!

له شک پرته د وطن اصیل بچیان هغه دي چې د وطن د آزادۍ لپاره داشغال په وړاندې وجنګېدل او لاهم د اشغال له بګیلو او پاتې شونو سره لاس وګرېوان دي، هغوی چې له اشغال سره په همکارۍ او غلامۍ خو پښېمان نه شول، بلکې لایې اوس هم په اهدافو ټینګ ولاړ دي، نودا به ډېره بې ځایه او غلطه خبره وي چې وایي: اوس خو بهرنیان نه شته داجګړې خپلمنځي یا دقدرت لپاره دي، سره له دې چې د بهرنیانو په خاص ډول دامریکایانو پوره ملاتړ ورسره دی. دوی لا اوس هم عبرت نه دی اخیستی او په خپل خره سپاره دي، په دې سربېره ورځ تربلې د ملکي خلکو کورونه بمباروي، ښځې، سپین ږیري او د ماشومانو له قتل عامه لاس نه اخلي.

یو د وطن د خپلواکۍ لپاره خپل سر ورکوي په اورونو لکه کباب وریتیږي، زندانونه، هجرتونه قبلوي، بل له دې پرته چې له موقع نه په استفاده دهیواد سرمایه لوټ کړي دېته هم نه دی تیار چې د بل هیواد تابعیت پرېږدي، بلکې نه غواړي چې په دې خاوره کې ژوند تېر کړي اهل وعیال یې ټول په بهر کې اوسیږي هغه به څنګه هیواد ته وفادار وي او د هیواد د مینې غبږ به یې رښتینی وي؟!

د وینو او د پیو مینان وپېژنئ او د هر چا په ظاهري چیغو مه تېروزئ! فکر وکړئ او له سوچ نه کار واخلئ چې د چا د وطن مینه شعاري ده؟!



# سردادن نعره الله اکبر به منظور

# دفاع از تحقق دموکراسی چه تعبیر دارد؟




استاد لطیف

( الله اکبر ) چه مفهومی را حمل وانتقال میدهد ویاشامل است؟ (الله اکبر ) یعنی خدابذرگ است وحاکمیت ازآن اوست جز او محلل،ومحرمی، نیست، ودربرابر حکم اوتعالی هیچ حاکمیت، وحکم وقانونی رانمی پذیریم، وهیچ قانون وضعی وبشری از هیچ حیثیتی در برابر قانون خدا برخوردار نیست، الـآن سـردادن نعرهٔ الله اکبـر بـه منظـور دفـاع از نیروهـای امنیتی، که هدف ایشان تحقق دموکراسی و اهداف آن است ، به استناد از قانون اساسی،که اصل أغیر اساسیست، وخط سـرخ قـراردادن جمهوریـت، هـیچ مفهـومی نـدارد ،حتی دربرابرقانون خدا قانونی دیگری رابه حیث قانون پذیرفتن و آنرا اصل نظام قراردادن به هرنام که باشد ازقبیل دموکراسی وو.. کفربواح وصریح است از طرف هرکسیکه باشد اگرکه ظاهراًاظهار اسلام راهم بنماید ، ونعرهای تکبیر را بلند نماید ،زیراکه تسلیم ،وانقیاد ندارد ،درحالیکه تسلیم وانقیاد جزء لاینفک اسلام است مثل اقرار ،وتصدیق،به استثناء حالت اکراه،تسلیم: عبارتست از راضی بودن به حاکمیت خداوند بدون اعتراض وبد دانستن آن.. ای کاش رقم سردادن تکبیر واقرار به آن تسلیم وانقیاد هم می بود ، خلاصه اینکه مردم وملت ره به این وا داشتن، جز سوء استفاده خودفریبی، وبه چشم ملت خاک زدن ،وبه نام اظهار اسلام کردن، و اهداف شوم دموکراسی ره پیاده کردن، چیزی دیگری نیست. ملت انشاءالله بیدار است از تمام مکر ونیرنگ وفریب تان آگا است وشماوامثال تانره خوب میشناسد ، ،من به هیچ گروهی مرتبط نیستم، امااز حق دفاع دارم ، وحق شعارم هست.

پیش از سردادن ندای الله اکبر باید دانست که مفهوم الله اکبر چیست؟

معنی الله اکبر اینست جزالله ذات بزرگتر که اورابه عنوان معبود وحاکم مطلق بپذیریم وجود ندارد وهیچ حکم را در برابرحکم الله تعالی نمی پذیریم.

حالا هم ندای الله اکبر وهم ادعای دموکراسی خواهی جمع بین دو پدیده متناقض است که یکی در وجود دیگری معدوم خواهد بود.وقتی به زبان الله اکبرمیگوییم درعمل هم باید ثابت بسازیم که الله ازهمه بذرگ است وهیچ امری ازامرالله بالاترنیست حلال الله راحلال بدانیم وحرام راحرام ازامرالله اطاعت وازنواهی الله پرهیزنمایم بادوستان الله دوستی وبادشمنان الله دشمنی داشته باشیم

خلاصه:

۲۳ سال زبان شما سکولارها و منافین را کیها برده بودند که الله اکبر را نمیگفتید ؟؟

اما حالا مانند فرعون در زمان آخر که به دریا غرق میشد گفت "آمنت برب موسی و هارون" یادتان آمد که شما هم الله اکبر بگویید ،...



## له نیواکګرو سره مینه پالونکی دوا خان

# که د ځوان نسل د عبرت یوه ناوړه الګو

■ استاد دلاور سیلاب

په معاصر تاریخ کې د امریکا د متحدو ایالتونو او پخواني شوروي اتحاد تر مینځ د تیرې سړې جګړې پر مهال نړی په اقتصادي، سیاسي او حتی ایډیالوژیکي اړخونو کې په دوو شرقي او غربي ستنو ولاړه وه. افغان جهاد یې شرقي ستنه ویجاړه کړه، (او د بلې هغې نړیدل یې رانږدې دي) د افغانانو د وینو په برکت سره امریکا د نړی بام ته وروخته او د یو بې سیاله مخکښ په توګه یې خپل ځان د کایناتو د خالق سره د هغه په ټولو صفاتو کې سیال او شریک وباله، په نړیوالو یې خپل ربوبیت ومانه او د نړی په طول او عرض کې یې خپلو تاریخي جنایتونو ته په نویو بڼو ورکولو او پلمو لټولو سره –لکه ددیموکراسی نه پلې کیدل یا هم دتروریزم شتون او داسې نور –دمظلومو ملتونو په ځپلو پیل وکړ. افغانستان او عراق یې په لومړني ردیف کې ونیول، د مصري فرعون په رسم یې نړیوالو ته ځان د هغوی رب او پالونکې وروپیژانده، قرآنکریم یې دا رنګه تعبیر وړاندې کړ، چې فرمایي: (أَنَا رَبُّكُمُ ٱلْأَعْلَىٰ) زه ستاسو ډیر لوی پالونکی یم.

په دې ډول یې د نړی یو قطبي کیدل اعلان کړل، د افغان په وینو د نړیوال تخت او تاج څښتن –د نړیوال کلي خان- بالآخره د احسان له منلو انکار وکړ، د شوروي اتحاد له ماتې څخه یې هم څه زده نه کړل. په مادي وسایلو سنبال دغه زبرځواک نور کفري هیوادونه هم راجمع او د څه باندې څلورو لسیزو مسلسلو جګړو ځپلې افغانستان یې اشغال کړ. دوی په دې اند وو چې افغانستان د بل مقاومت او پاڅون توان له لاسه ورکړی دی. ځکه چې تر مخه یې روسي اشغال او بیا کورنۍ جګړې او د هغې ناوړه عواقبو لکه فقر، بیکاری او داسې نورو آفاتو ځپلی و، امریکا په دې نا انډوله جګړه کې له خپلو یو شمیر جنایتونو سربیره د روسانو اشتباهات هم تکرار کړل. روس پلوه کمونستان، غرب پلوه اجیران او داسې نور داخلي او خارجي اجنټان یې د کاري مهرو په توګه په مظلومو افغانانو جبرا او قهرا د چارواکو په توګه مسلط کړل. د دغو مهرو په لړ لیک کې یو هم له دوی سره رښتینی مینه پال او خواخوږی دواخان هم دنګ ولاړ و. نوموړی په پوره اخلاص سره د غرب د سترګو تور، د زړه ټکور، د مزدور صف د هر ټپ دوا- خان-او ددوی رښتینی مینه پال و. نوموړي په ځان د خپل خالق بې شمیره پیرزوینې لکه: علم، روغتیا، ځواني، جالب نطاقیت او داسې نور بې ساري نعمتونه بې ځایه وکارول. نظر، فکر، عقیده، او کاري صف یې ددین او وطن د دښمنی په غلط مسیر سره سوق کړل. تر ټولو بده یې لا دا چې د توبې فرصت یې هم ونه موند او بالاخره آخره خاتمه یې هم په دغه ناولي صف کې د ناروا اهدافو د حصول په لاره کې ډیره دردوونکې او ناهیلې کوونکې وه. نوموړي باید د ارتداد په صف کې دغه سرښندنه نه وای کړې، خپله دنګه ځواني او لوړ استعدادونه یې باید د دین او وطن په خدمت کې کارولي وای. د خپل محتوم اجل سره سم یې که نن له فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې وای نو راتلونکو نسلونو ته به یې ژوند او اند د یوې بهترینې الګو په توګه په میراث پاتې وای، او ددې مبارک آیت مصداق به وای، چې فرمایي: (مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا) خو داسې ونه شول. له دین او وطن سره کینه پال دوا خان اوس نشته، مګر اقوال او افعال به یې د تاریخ راتلونکي نسلونو ته د عبرت یوه ناوړه بیلګه وي. نوموړي د یوڅو ډالري کاپیو په بدل کې یو شمیر کاذب شعارونه زمزمه کول، لکه چې ویل به یې:

۱. "د افغانستان د اسلامي جمهوریت جمهور رئیس ...".

(خو دغه خیالي اسلامي جمهوریت د افغانستان په ځمکه شتون نه درلود، ټاکنیز نه بلکه انتصابي او د –ادها تیرا، ادها میرا- په کاواکه تشکیلاتي بنسټ د ولاړې نیمایي پلې بې صلاحیته وایسرای یې اشرف غني و).



د سرپل په مرکز کې دوه پوړیزه جومات د کابل اداري د چوړلکو لخوا په بمبار کې ویجاړ شوی

۲. "مردم افغانستان...". نه پوهیږم چې دا به یې څوک یادول. افغانان خو دوی وژل چې دا (مردم افغانستان) به لا څوک وو؟

۳. "اشرف غني له خپل سیال ټرمپ سره وکتل / تلفوني خبرې یې وکړې ..."، مګر (Trump & Co.) خو دده باداران وو نو سیالان یې بیا په څه کې شول؟ البته که عقیده او نظر یې هدف وي نو بیا سمه ده.

دداسې پوچو او چټي ویناوو ویونکو ته قرآنکریم سخت عذاب او هلاکت اعلانوي لکه چې فرمایي: (فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿١١﴾ الَّذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ ﴿١٢﴾): د قیامت په ورځ به هلاکت، افسوس او لویه تباهي د هغه چا سره مله وي چې -نن دوی په دنیا کې- په چټي (بیکاره) خبرو جوړولو کې مشغول دي.

هوکې! له کابلي ګوډاګي رژیم او خارجي بادارانو سره د دواخان مینه پالنه بې ساري وه چې د سر په بیه ورته تمامه شوه. تر ټولو خواشینوونکې یې لا دا چې اوس یې کونډه او یتیمان اولادونه د نوموړي له سرپرستی بې برخې د نورو لاس ته کښیناستل. او په خپله له دوه ګزه سپینې ټوټې سره یوازې له دې فاني نړۍ سترګې پټې کړې او وکوچید. دابدي سفر دلارې یوازینې مسافر شو.

افغانان په داسې حال کې چې د مینه پال په دغه بې ځایه مینه پالنې او سرښندنې خواشیني دي، په نوموړي او دده په څیر په نورو تنکیو ځوانانو یې دا ډول خاتمه پیرزو نه ده، هغه هم په داسې دردوونکي بڼه چې دنیا او اخرت یې دواړه تباه او برباد شول.

دداسې کسانو په مړینه ځمکه ا و آسمان نه زیانمنیږي او نه هم پرې کوم خفګان کوي، الله تعالی فرمایي: (فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ): نه آسمان پرې وژړل او نه ځمکې، مفسرین یې په هکله وایې چې دوی ښه اعمال نه درلودل څکه نو پرې آسمان او ځمکې ونه ژړل او دغه دوه لوی کائنات پوره څلویښت سهاره هغه وخت پرله پسې ویر او ژړا کوي چې د نیکو اعمالو ترسره کوونکي مړه شي. چې بیا نه هم په ځمکه نیک اعمال اجرا کیږي او نه هم آسمان ته کوم نیک عمل پورته کیږي، له دې امله دغه لوی کاینات یو هم د داسې کسانو په مړینه ماتم نه کوي.

کائنات لا څه چې ډیر ژر به دبادارانو له حافظې هم محوه شي، البته ډراماتیکه غندنه او تعزیت کول کوم باک نه کوي.

په پای کې د یادونې وړه ده چې د دواخان په څیر ځوانان که ژوندي هم وي نو مړه دي او هغوی چې د خپلې تنکۍ ځوانۍ پر سر یې له الله سره د جنت سودا وکړه، او لا کوي یې، که شهیدان هم شي نو بیا هم ژوندي دي، چې تر قیامته پورې به روزي خوري لکه د رښتینو شهیدانو په باب د قرآنکریم دغه فرموده: (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ).

الله مو دې له ناوړه خاتمې وساتي- فاعتبروا یا أولي الأبصار




# هندوستان دې

## الوتکې او وسلې نه راليږي!

بشير

ملګرو ملتونو کې د«امنيت شورى» په نوم ځانګړې اداره دنړيوالو ستونزمنومنازعاتولپاره دحل مندلو پخاطررامنځته شوې، نن سبا نړی کې د لويو منازعاتوپه سر کې «فلسطين، کشمير اوافغانستان راځي» په افغانستان باندې د يوولسم ستمبر په پلمه امريکا ناروا يرغل وکړ، دکوم له امله چې په لکونو انسانان شهيدان، ټپيان، بنديان او د خپلو کورونوڅخه وويستل شول اوله تيرو شل کلوراهيسې افغان ولس يې په يونه پای لړونکي ناورين کې ښکېل کړی دی.

که څه هم د دوحې تړون د لاسليکېدو وروسته د دواړو خواوو څخه شاوخوا شپږزره بنديان ازادشول، بين الافغاني مذاکرات هم شروع شول خو د کابل ګوډاګي رژيم د خپلو ناغيړيواو سرغړونو په وجه مذاکرات بري ته پرنښبودل.

همداراز د دوحې توافقنامې په ترڅ کې د امريکا اوناټو اکثريت ځواکونه له افغانستانه ووتل، د بګرام هوايي ډګرچې په تيرو شل کلونو کې دامريکا ترټولو لويه اومجهزه پوځي اډه ګڼل کيده،يوه مياشت وړاندې يې تخليه اوخپل عسکر يې ترې لکه دغلو پشان د شپې پټ وويستل.

کله چې دامريکا اوناټو په وتلو باندې د خلکو باور پوخ شو،چې هغوی نور درومي او د لته نه پاته کېږي د ګوډاګي رژيم د ليکو دننه هم په زرګونو عسکرو اوخلکو د افغانستان اسلامي امارت له مسؤولينوسره تماسونه ونيول او يوشمير ولسوالی، پوځي مرکزونه او غونډونه يې ورته دوسلو، مهماتو، ټانګونو، شوبلو،نقليه وسايطو سره يوځای د جنګ پرته تسليم کړل چې په دې توګه په لنډه موده کې د کندهارڅخه تر بدخشان او د نيمروز نه ترکندوز اوتخار پورې پراخې سيمې او په سوونو ولسوالۍ دافغانستان اسلامي امارت تربيرغ لاندې راغلې!

د هغه وروسته د ولايتونو د مرکزونوڅخه هم د خلکولخوا طالبانوته د ورتلو بلنې ورکول کېدې چې دهغو په لړکې دادی نيمروز، جوزجان، سرپل، کندز، تخاراو سمنګان هغه لومړني شپږ ولايتونه شول چې د ولسي خلکو په همکاری د ډير کم مقاومت پرته د افغانستان اسلامي امارت د مجاهدينو لاسونو ته ولويدل او تردې شيبوپورې هلته ټولې ادارې او امنيتي چارې د ځايي امارتي مسؤولينو لخواپرمخ وړل کېږي.

دامريکا او ناټوعسکرو دوتو وروسته يوشمير رسنی اود مبصرينو په نوم افغانستان کې دامن دښمنان په خاصه توګه هندوستاني لابيان په دې پروپاګند کولو اخته دي چې امريکا بايد دومره په عاجله توګه افغانستان نه وای خوشي کړی او خپل اشغال ته يې څو کاله نورهم دوام ورکړی وای، هغوی دا مفروضې وړاندې کوي چې دامريکا په وتو سره به يوځل بيا په افغانستان کې کورنۍ جګړه پيل شي، څنګه چې د شوروي ځواکونو دوتو وروسته پيل شوې وه خوکه له دغوسرمغزنومبصرينو اورسنيو څخه پوښتنه وکړو چې« دا شل کاله چې امريکايان اوناټوعسکر په افغانستان کې ميشت وو، هغه مهاله جنګونه؛ نه وو او ارامه ارامې وه؟ ايا دامريکايانو داشغال پر مهال افغان ولس دلويو وحشيانه نا امنيو اونا اراميو ښکار نه و؟ حقيقت دا دی چې دامريکا او ناټو ځواکونو په موجوديت کې افغان ولس د وسپنونينې چيچلې! هغه کوم داسې ظلم يا وحشت دی چې امريکايانو په افغانانو نه کاوه؟ او د دې پروپاګند ترشا پخپله د کابل د شړيدلې رژيم دلاس لرلو سربيره د هندوستان او هندي رسنيو زيات لاس دی، زکه هند په افغانستان کې د امريکايي اشغال غځيدل غوښتل او اوس کابل رژيم ته دامريکا وروسته د زياتو مرستووړکولو لپاره هم سينه دی ډبوي، همدېته په پام د تيرې خالي په ورځ د هند اوکابل رژيم په ګډه غوښتنه دملګروملتونو امنيت شورى دافغانستان په اړه يوه ځانګړې غونډه رابللې وه اوپه هغه کې هند او ګوډاګي رژيم په ګډه دا کوښښ وکړ چې په افغانستان کې د نويو فتوحاتو نسبت پاکستان ته وکړي اوپه دې توګه د افغانانو وياړونه او افتخارات له افغانانو څخه واخلي او پاکستان ته يې ورکړي! حال داچې د پاکستان کړه وړه په تيرو شل کلوکې ښکاره دي، پټ ندي ، پاکستان

پخپله وايي چې هغـه د امريکـا سره پـه جنګـي ائتلاف کې ترنورو هيوادونـو مخـکښ غـړی و او دی؛ دشک پرته د پاکستان ولـس اود هغـه ځـای علماء او روحانيون په دين زيات مين خلک دي، په تيرو څلورو لسيزوکې هغوی د مبـالغې پرتـه د افغان ولس سره دزړه له کومې ښېګڼې کـړې دي، هغـوی پـه افغانسـتان کـې د امريکـايي اشـغال د بدمرغه اثراتونه هغومره اضرارو ليدل څـومره چې افغانان ولس وليدل، څنګه چې پـرون پاکسـتاني ولس د شوروي پخلاف مجاهدينو سره خواخوږي درلوده، هغسې دامريکا پخـلاف د مجاهـدينو او طالبانو سره يې هم لري خو دا پـه دې معنـی نـده چې دپاکستان دولت يې هم لري څنګه چې اوس مهال په ملګرو ملتونوکې د امنيت شورى مشرې د هندوسـتان سره ده، هغـه پرلپسـې لګيـا دی کوښښ کوي چې د امنيت شـورى سـتيج د خپـل سـيال (پاکسـتان) پخـلاف وکـاروي اوهغـه دافغانستان د اوسني وضـعيت مسـؤول وګرځـوي حـال دا چـې پخپلـه هندوسـتان چـې څـومره د افغانسـتان د ننـه ځـان د افغانانوپـه کورنيـو معاملاتوکې ننويستی دی پاکستان هغـومره نـدی کړی، هند غوارې افغانستان کې د جګړې اور تـه لمن ووهي، دافغانانو دوژلو لپاره وسـلې، پيسـې او الـوتکې راليـږي، نـود دې پـر ځـای چـې هنـدي چاروکې بل ته ګوته ونيسي او دهغـه د محاسـبې غوښـتنه وکـړي ښـه داده چـې خپلـه اخلاقـي محاسبه هـم وکـړي او پـه افغانسـتان کـې خپـل يوطرفه سياست ته د پای ټکي کېږدي، افغانستان ته دي د جګړې د اوږدولو لپاره جنګـي الـوتکې او و سلې نه راليږي کنه دا به پـه راتلـونکي کـې پخپله د هند لپاره ښې پايلې ونلري، په دې لړکې بايد هرو مرو دهنـد ولـس راپورتـه شي او د خپـل دولت د ناسم او مغرضانه سياست په باب دي ترې پوښتنه وکړي اوخصوصاً په افغانستان کې د خپل دولت نه د جګړه مـارې پاليسـی حسـاب وکتـاب وغواړي!

# د جنګ په ژبه خبرې څوک کوي؟

عبدالله منصور

د امريکا او ناټو ګوډاګيانو شل کاله د افغان ولس د قتلولو، ورانولو او ځورولو لپـاره هـره حربه او دسيسه په کار واچوله، خارجي بادارانو ته به يې هره مياشت او هره اوونۍ د نوې او تازه ستراتيژۍ غوښتنه لرله ترڅو د افغانستان په کليو، بانډو او سيمو کې له نـوي وحشـت سره سـم عمليات وکړي، زهرجن او غټ غټ بمونه وکاروي او مظلوم افغانان زندانونو ته يوسي .

خو تر اوسه يې زړه لايخ نشو امريکا او ناټو له خپل بربريت سترې شوه او وتښتيده خو د کابل د ناولي رژيم چارواکي ماړه ندي هره ورځ پلاوي ورپسـې امريکـا، برتـانيې، هندوسـتان او نورو هيوادونو ته استوي او ترينه غواړي چې د افغانستان د ورانولو او بربادۍ لپاره وسلې، بمونه او پيسې ورکړي

اشرف غني ولايت په ولايت چيغو ته کار وهلی جلسې جوړوی غواړي خلک تير بـاسي ورته وايي د ۳ مياشتې او يا ٦ مياشتې ورسره ودريګې ترڅو حالات داسې لـوري تـه سـوق کـړي چې کېده په شا اشغالګر بيرته خپلې بسـترې وغورځـوي، محب جـان يـې د کيونـاري لمسـيانو (انګليسانو) ته ورغلی.

په رمز کې ورته وايي چې: د مکناتې د انتقام چانس له لاسه مه ورکوئ او د نيول شـويو ولسواليو د بمبارد لپاره يې هڅوي.

سالې خو هسې هم په خولې کې د جنګ سکروټې ګرځوي
دوی هره خوا چيغې وهي :
کله ورته وايي ولسوالی راته ونيسئ جنرالي درکوم
کله ورته وايي ځانونه ووژنئ يوه، يوه نمره درکوم
کله ورته وايي ځانونه ووژنئ چې لاړې، کـوڅې مو په نوم کړم
کله ورته ووايي فقط ٦ مياشتې ځانونه مرګ ته ورکړئ
کله ورته وايي تاسې د نيويارک او واشنګټن ساتونکي يئ
کله ورته وايي سر يې وهو سنګر يې نيسو
کله ورته وايي ژوندي يې مه نيسـې ځـای پر ځای يې ووژنئ
پدی ټولو کې تاسې د سولې ادبيات راوښيئ؟

عسکرو ته چې هر څه د امتيازاتو وعدې ورکوي خو اوس هغوی بيچـاره ګـان هـم پـرې اعتماد نه کوي. زه يې څه کوم الله شاهد دی چې په عسکر بيچاره مې زړه سوځي هسې يې لـه ځانه د هغه اور خشاک جوړ کړی کوم ته چې چورواکي ځانونه ګرموي، نه نمره شته، نـه جـاده شته، عسکر بيچاره د تابوت ساز ټيم صرف تر تابوت پورې پکار دی بيا يـې کونـډه او ماشـومان پوه شه او وير يې ، تر ټولو بده يې لا دا چې :

کله يې چې بيا کونډه بيچاره د خاوند حقوقو غوښتلو لپاره دفـــتر په دفـــتر ګرځـــي مامــورين يې ترې جنسي رشوت غواړي خدای شاهد دی که په حيوان مې زړه کيږي انسان خو لا پر ځای پريږده.

خدای دې نور د جنګ او بدبختيو ټغر لدې ملکه ټول کړي، د هيڅ افغان کـور ويـر ونـهويني او دا وطن دې خدای په امن او اسلامي نظام ښکلی کړي.

# دمجاهدينو فتوحات او دافغانستان غليمان!

احمد عزام

د مجاهدينو روستي پرمختگونو نړۍ وال حيران کړي ځکه هغوي دا فکر هم نه وو کړی چې طالبان به په دومره چټکتيا سره په دا پيمانه سيمې د خپلو موټرسېکلو د ټيرو لاندې راولي د کوچني اختر او ستر اختر تر مابين جگړې زور واخيست خو ډېرې ولسوالۍ تسليمي شوې طالبان د عسکرو د وژلو اراده نه لري /نه يې درلوده همدا لامل ده چې طالب هغه څه لاسته راوړل چې دونياوالو ته ناشونې برېښده

دا چې ولې طالب په داسې حالت کې د سيمو لاندې کولو عزم وکړ او دغه د فتحو لړۍ دومره تېزه وه چې دې ورځې تر شلو پورې لا زياتې ولسوالۍ ونيولې په تېره مياشت کې يې تر دوه نيم سوو پورې ولسوالۍ ونيولې او همدا ډول اوس په درې ورځو کې يې تر پينځو پورې ولاياتونه تر خپل تسلط لاندې راوستل او يو شمېر ولايتونه اوس تر کلکې محاصرې لاندي دي لا د فتحو بهير جريان لري نړۍ والو ته تر ټولو جالب او نادر د هېواد په شمالي ولاياتو کې سيمې نيول وه ځکه د امارت په وخت کې د شمال ځينې ولاياتونه او سيمې تر اخره ونه نيول شوې عمده لاملونه د ځايي مجاهدينو کبود يا په بله اصطلاح نشتوالی او د نورو ولايانو مجاهدينو نابلدتيا يې بللی شو خو د امريکايانو د يقني خروج له امله طالب مکلف وه چې داسې پرمختگونه ولري که چېرته موجوده اداره څلور مېاشتې هم په هغه حال پاتې شوې وی لکه د کوچني اختر څخه دمخه چې وه دا به د طالب لپاره ډېر په زيان تمام شوی وه امريکا به هم نړۍ والو او خپلو هېواد والو ته يو څه سترگې جيگې وی چې مونږ افغانستان ته تگ عبث نه وو هلته د ځان په نفعه مو يو داسې نظام جوړ کړی چې زمونږ له عملي حضور يا نظامي مرستو پرته مقاومت کولی شي همدا ډول نړۍ والو به هم طالبان په دې کې پړه بلل چې ولې جگړه ورسره کوی د دوي په اصطلاح حکومت که اولسي- ريښې نه درلودی دومره مقاومت يې نه شوای کولای موخه مې دا تړې ثرگندول دي چې د طالب به نظامي او سياسي مبارزې ننگول شوې وی خو طالب د دې ستونزو او ننگونو ادراک کړی وه ځکه تيز پرمختگ يې وکړ تر څو دونياوالو ته وښايي چې دوي بغير له بهرنيانو درې مياشتې هم عمر نه لري

د کابل ادارې لپاره د شرم او نړۍ والو ته د حيرانتيا د هېواد غالباً اوه بندرونه نيول دي د طالبانو له لور تر ټولو د بولدک لسوالۍ چې ورسره پاکستان سره سرحد لري په نړۍ واله کچه د کابل ادارې ماته يقيني وبللی شوه ځکه بولدک ډېره ستراتېژکه سيمه او دوي لپاره هم ډېره مهمه وه دوي داسې نه وه انگيرلې چې ياده ولسوالۍ به دومره ژر طالبان و نيسي-او دومره آسانه به يې فتحه کوي ځکه يادې ولسوالۍ کې د رازق ډېر جابر قومندانان وه او له طالبانو سره يې د سختې دوښمنۍ عقده درلوده خو د طالبانو پر وړاندې د هغوي شاتگ د ادارې ملاتير مات والی يې بللی شو

اوه بندرونه څخه د مزدورۍ ادارې اقتصادي اړخ پیاوړی وه خو د طالبانو لاسته په لوېدو د کابل ادارې اقتصاد هم تر ډېره فلج شه څکه هغه کلنی، میاشتنیو عوایدو په تر لاسه کولو طالبان تر ډېر بډایه کولی شي که څه هم طالبان د مخکې په نسبت وسایل ورسره پریمانه دي خو دا چې د نظام ځښتنان کیږي شاید له ځینو هېوادو غټ وسایل ټانګونه او الوتکې په نغدو واخلي په دې سره د طالبانو نظامي قوت لا پیاوړی کېدلای شي خلاصه دا چې طالب اوس د نړۍ والو لپاره یو تریخ حقیقت ده مجبور دي چې په رسمیت یې ومني څکه طالب که له یو لوري نظامي سیاسي او فرهنګي قوت ګرځېدلای له بل لور اقتصادي حالت یې تر پخوا لا پیاوړی شوی او غښتلی شوی

د طالبانو په روستیو فتحوحاتو د راغلو یرغلګرو لوړ پوړي چارواکي هم اعتراف کوي ځینې وایي چې د طالب روستیو پرمختګو ته وکتلی شي نو ژر په کابل واکمنېدونکې دي خو دوي د دې لپاره چې مورال بایللو عسکرو ته روحیه او مورال ورکړي په ځینو سیمو کې هوایي بریدونه کوي چې له تړون څخه ښکاره مخالفت ده که څه هم طالبانو رسمي غبرګونونه پرې وښودل او اخطارونه ورکړل دا چې طالبان یې په وړاندې نظامي برخورد نه کوي د دوه لاملونه لري

(1) دا چې دوي د وتلو په حالت کې دي او افغانان عموماً دا عادت لري چې د تېښتې په حالت کې په دښمن هېڅ غرض نه لري

(2) دا چې امریکا د تړون له ابتدایي ورځو څخه بیا تر ننه پورې په ځلونو تخطیاني کړي طالب د هغوي د ډېرو زاریو روسته موده تمدید کړه دوي بیا هم سرغړوني وکړې او میاشت یې لا پاتې نو طالب څکه پرې وار نه کوي چې نړۍ وال د دوي له مکر فریب ، په وعدو بې وفایي او له تړون څخه سرغړونو څخه یې آګا کړي

امریکا د افغانانو له لور زجر لیدلای ضرور به روستی ګوزار کوي خو طالب مشران ورته متوجې دي د دوي پلانونه په خنثاء او اولس ته به له ګوزار یې نجات ورکړي ان شاء الله

# د کابل ادارې ناکامې هڅې!

احمد تمیم

اسلامي امارت د وروستیو فوق العاده پرمختګونو په ترڅ کې د هیواد په لر او بر کې د ستراتیژیکو سیمو د نیولو ترڅنګ شپږ مهم بندرونه هم تر خپلې ولکې لاندې راوستي چې له امله یې نه یوازې کابل اداره په نظامي ډګر کې په ملا ماته کړه بلکې زبردسته سیاسي او اقتصادي ضربه یې هم ورکړه او د فاسدې ادارې د عوایدو کچه یې ۴۰ سلنې ته را ټیټه کړه .

د طالبانو وروستیو سیاسي او نظامي تکتیکونو د کابل ادارې د لوړ پوړو چارواکو او امریکایي جاسوسانو هوش او حواس باخته کړي. شکست خورده دښمن د خپل ناکام مدیریت، ملي استفراق او غیر مشروع برخورد د اخفاء په خاطر له ټولنیزو رسنیو څخه په استفادې نمایشي تبلیغاتو ته زور ورکړی، د شام او عراق د شهیدو ماشومانو د انځورونو توزیع، د پخوانیو بمباریو ویډیوګانو خپرونه، بې بنسټه خبرونه، اتهامات، په مفتوحه ساحو کې د مرموزو وژنو، محدودیتونو او په تعلیمي نصاب کې د تغییر او تبدیل کاذبې او بې بنسټه اوازې خپرول .

د کابل ادارې تبلیغاتي مزدوران د ورځني مهمو موضوعاتو څخه د عامه اذهانو د تصریف/پام اړونې په موخه نوې سوژې را برسېره کوي کله د رازق لغړي د کور د چور کېدو اوازه خپره کړي او کله له مشهور ظالم او وحشي خاشه قوماندان څخه کامیېن شخص جوړ کړي او د مظلومیت جامې ور واغوندي. اشرف غني په روان بد حالت او ناارامه وضعیت کې د خپلو مرال بایللو ځواکونو د روحیې د لوړوالي په خاطر مادي او امتیازي طمعې او وعدې ورکوي تر څو د ملت په وړاندې مقاومت او د خپل فاسد نظام د بقاء لپاره یې سپر وګرځوي .

خو د کابل ادارې له روان وخیم حالت څخه په استفادې ځینو لوړ پوړو چارواکو یې استعفاء ورکړه لکه د واشنګټن لپاره ټاکلې شوې سفیره رویا رحماني او د دفاع وزارت مرستیاله منیره یوسفزاده هغوی په خارج کې پناه واخیستلې او کابل یې د ځان لپاره د خطر ځای وګاڼه او ځینو یې په تشو بهانو د تېښتې لاره غوره کړه، د روانو حالاتو په تناظر کې داسې ښکاري چې په لنډو شپو کې به د تېښتې دغه لړی نوره هم مسرعه شي.

# دهیواد مشهور جید عالم

## اوجهادي شخصیت شیخ القران والحدیث

## مولانا عبد الحکیم شرعي صاحب سره د څرک مجلې مرکه

د حق غلبه "محض" د الله په نصرت سره راځي، د الله تعالي نصرت د امیر اطاعت او دنیت اصلاح غواړي، هرکار چې دالله درضا لپاره وي اختلافات پکې نه پیدا کیږي.

**پوښتنه**: جناب شیخ صاحب څرک مجله دخپلو نومیالیو شیوخو او استادانو سره دمرکو او پیژندلو په لړ داخل تاسې انتخاب کړي يئ؛

ترڅو مو درانه لوستونکي او مینه وال دقیمتي ژوند له لوړو ژورو، علمي تجاربو اونصائحو څخه مستفید شي

نو که مو خوښه وي پیل به یې ستاسې له ځاني تعارف څخه وکړو چې دې فاني دنیا ته مو چیرته اوڅه وخت سترګې پرانیستي، ابتدايي، منځی زدکړې مو چیرته ترلاسه او بالاخره فراغت مو چېرته وشو؟

**جواب**: إن الحمد لله نحمده ونستعینه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سیئات أعمالنا من یهده الله فلا مضل ومن یضلل فلا هادي له، وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شریك له وأشهد أن محمدا عبده ورسوله امابعد:

الله مو خوشحاله لره په لنډو الفاظو کې بائید ووایم چې مونږ د خوست ولایت یو، د خوست ولایت مرکز سره مربوط درې قومونه دي یو د (متون، شمل او بل د لکڼو) بیا دا هر قوم ځان ته د یوې ولسوالی حیثیت لري په دې درې قومو کې زما تعلق د لکڼو سره ده لکڼو قوم کې بیا د ایوب خیلو غټ کلی ده په دې کلي کې زما ولادت او پیدایښت شوی ده؛ تاسو ته معلومه ده چې پخواني خلک دومره تعلیم یافته نه وو خصوصاً زمونږ کورنی چې وه که څه هم مشرانو وروڼو مې مکتبونه ویلي وو خو! ډیره علمي کورنی نه وه نو له دې امله پلرونو او نیکونو مو د پیدایښت تاریخ نه ده لیکلی هسې له اندازې دومره پته راته لګیږي چې (دیارلس سوه څلویښتم۱۳۴۰) هجري شمسي همدې شاوخواکې زما پیدایښت شوی وي زما خپل نوم عبدالحکیم والد صیب مې دین محمد او نیکه مې باز محمد نومیږي، ابتداي زده کړې مې د ظاهر شاه اخري کلونه تقریباً زمونږ په لکڼو کې د لکڼو په نامه باندې یوه لیسه وه په هغې کې زمونږ مشر- ورور و او هغه داخله راته واخیسته چې کله مونږ شامل شو په اول کال مو سبقونه منظم ویل خو شوق مو نه وه ورسره خو البته غیر حاضري مو هم پکې نه ده کړې له هغه څخه وروسته بیا د کمونستانو تحرکات شروع شول دې تحرکاتو کې روزانه به جلوسونه او مظاهرې وې له علماؤ سره دوښمني؛ یعني که به په لاره عالم تېرېدو هغه پسې به سپکې سپورې ویل کېدې نو د هغه له امله زمونږ له مکتب یا عصري علومو څخه مایوسي پیدا شوه؛ نو له لومړي ټولګي تر شپږم ټولګي مونږ په دې مکتب کې وو خو غالباً زمونږ دوه ساعته مجبوریت به وو چې سحر به ورغلو هغه به هم په دې موخه نه وو ورغلي چې څه زده کړو یا یې واورو کله به مظاهرې شوې کله به مونږ راغلو خو یو ځاي کې به ناست وو تر څو د مکتب ټیم مو پوره شي بیا به مونږ کور ته لاړو او دا انتخاب مو د مدرسې څکه کړی وو چې دې علماوو یا دې مدرسې سره زمونږ طبعي مینه وه داسې نه چې چا هڅولي وو نو له دې امله هغه زمونږ د عصري علومو زده کړه ډېره نیمګړې وه شپږ کالو روسته زمونږ

هغه مشر- ورور خبر شو چې دوي مکتب سم نه وايي ماته خويې څه نه ويل خو مونږ د دوو ميندو ورونه يو مونږ ټول ماشاء الله پنځلس ورونه يو سكه ورونه لس او ناسكه پينځه دي په دوى کې زما يو مېرنى ورور وه تقريباً همزولي وبوله او دا مشر- چې مونږ سره سختي كوله ميرنى ورور مو وو نو چې كله به جر وبحث راغى چې تاسو ولې مكتب ته نه ځئ نو ما به ورته ډېر جواب نه وركولو هغه بل به ورسره مُشت ګرېوان وو جګړه به يې شوه په يو او بل به يې ګوزارونه كول زه به پكې آرام پاتې ووم خو په اخيركې پلار مو پوه شو چې دا كار نه كيږي نو بيا زمونږ مشر ورور ته وويل چې دا هلكان پرېږده يو څه وخت داسې معطل پاتې شو نو بيا پلار راته وويل چې ګورى د زندګي تعليم ته ډېر زيات ضرورت ده كه څه هم زمونږ پلار مدرسه نه وه ويلې، يو ديندارہ سړى وو قرآن كريم يې دوام دار ويلو بل دا چې له علماؤ سره يې ډېر زيات تعلق و؛ نو چې كلي ته به كوم عالم راغى ډېر كم به پيښېدو چې د بل چا كره به تلى وي؛ اكثره به زمونږ كور ته راتلل زمونږ أنا به دا اصيل غوړي ورته تيارول او پلار به مې چرګ ورته حلالوه پلار به مې تل له راغلو علماؤڅخه په حجره كې علمي پوښتنې كولې اخري نتيجه دا وه چې په جزياتو فروعو كې به د چا مسئله وه چې د جومات امام به نه شواى حل كولاى پلار به مې ورته حل كوله حتى داسې هم شوي چې زمونږ د مدرسې ملا وو زما پلار يو كال مخته ترې حج كړى وو په يوې مسئله كې د صفا مروه سعي كې بحث شو نو هغه ملا په دې خطا شوى چې ځلوارلس پېرې به ځې پلار مې ورته وويل چې په قران كې راغلي چې له صفا به يې شروع كوې په مروا به ختموې اوس ته راته ووايه چې څنګه سوارلس پېرې به له صفا شروع كوې په مروا به يې ختموې؟

خو هغه بيا هم قناعت ونه كړو نو بيا پلار مې ورته وويل چې تاسو په مدرسه كې مدرسين يى ملايان يئ زه خو يو امي سړى يم خو تاسو په مدرسه كې پوښتنه وكړئ ماته يادېږي څو ورځې پس هغه عالم مې پلار ته وويل چې حاجي صيب ستا خبره صحيح وه چې كله به كلني مسايل لكه د زكات روژې لمانځه حج او همداسې نور مسايل پيښ شول دا به علماؤ ته تلو.

ماته يادېږي چې د والد صيب مې د حج كولو نېټه رانېږدې شوه تقريباً يوه مباشت زمونږ په كلي كې يو عالم وو هغه ته به ورته او د حج مسائل به يې زده كول او دا د حج مسائل داسې وي چې اشتباهات خلكو ته پيښېږي خو زمونږ پلار ډېرمحتاط او با بصيرته وو نو پلار مې دا خبره راته وكړه چې مكتب ته خو نه ځى دې مدرسې ته خو ځه دې مدرسې كې خو به څه زده كړه وكړې! كله چې مونږ مدرسې ته روان شو مدرسې سره زمونږ طبعي شوق وو هر څه په شوق باندې كيږي نو زمونږ كورنى كې علماء نه ول او په دې قوم كې د ګوتو په شمار علماء و د مدرسې مهتمم يو سپين ګيرى عالم وه هغه زمونږ په ورتګ ډېر خوشحاله شو كه څه هم زمونږ علمي كورنى نه وه يو با روسوخه كورنى وه، نو يوې داسې كورنى چې مدرسې ته يې طالبان ور كړل كېداى شي دا نور قوم هم تشويق كړي نو د مدرسې مهتمم خپله مونږ ته كتابونه شروع كړل سره له زياتو مصروفياتو څه وخت روسته نو بيا مهتمم بل مولوي صيب چې د هغه نوم وو شومت خان و او مدرسه كې يو ممتاز مدرس وو هغه ته يې وويل چې دې ته به سبق وايې نو هغه مونږ ته ابتدايي كتابونه شروع كړل زيات محنت يې راسره كاوه نو دهغه د محنت وجه وه چې دا سلسله كاميابه اوروانه شوله تقريباً ۱۳۵۵ هجرى شمسى كال كې له مدرسې چې ووتو نو بياخو ۱۳۵۷ كې خو انقلاب راغلو نو هغه مولوي صيب څو ځل كمونېستانو ګير كړو بيا به يې را خلاص كړو په اخر كې يې داسې ګير كړو چې تر نن تاريخه پورې معلومات يې نه كيږي ژوندى ورك شو له هغه روسته دا كال لا نه وه پوره شوى د جوزا په تېرېدو سره سرطان كې مونږ هجرت وكړ دا هجرت په داسې مشكلو حالاتو كې و هر څه له مونږ څخه پاتې شول آن چې ماشومان مو هم پرېښودل مونږ صرف دا غټ كسان د پلار په شمول باندې ووتو يو څه وخت كوچيانو سره دېره شولو كله مو چې ماشومان ځاى په ځاى كړل نو بيا پاكستان ته لاړو دا كال ۵۷ خو په نيمه كې وو، بل كال ۱۳۵۸ كې مې طالبي دهنګو په كهي مدرسه كې شروع كړله يعنې ديني تعليم ابتدا مو له كهي مدرسې په دې وجه شروع شوې وه چې هلته په كلي كې خو زميدارې وه يو ورځ به مو اوبه لګولې

بله ورځ به مو لرګي را وړل بله ورځ به مو ژرنده وه خو د دې با وجود الحمدالله درس سره مو طبعي مينه او درسونه مو ويل.

**پوښتنه**: عزتمنده: تشويق او باعث مو څه اوخوک وو چې ديني علومو ترلاسه کولو ته مو مخه کړه آيا د طالبي په دوره کې مو دا فکر او اميد وو چې يووخت به داسې يو جيد او نوميالی عالم او مدرس درنه الله پاک جوړوي؟

**جواب**: دې باعث څو لاملونه درلودل:

۱- مدرسې او ديني علومو سره زما خپل شوق وو او دا يو داسې وخت وو چې له علماؤ څخه کرکې نفرتونه انتهايي زيات وه ځکه کمونيستي دور وه له علماؤ سره د دوي کرکه زما له علماؤ سره د محبت او الفت لامل جوړ شه او زما له مدرسې سره شوق پيدا شو.

۲- د پلار مې له علماؤ سره ډېره مينه کوله له هغوي سره به يې مجلسونه کول او علمي پوښتنې به يې کولې او علماء به اکثره د مېلمنو په توګه رابلل.

۳- أنا مې راته ډېرې دوعاوې کولې ځکه زه په ډېر ګران وم ما يې خدمت ډېر کاوه او د أنا د خوښې شيان به مې ورته راوړل د أنا مې قندهاري انار خوښ وو نو زه به چې له مدرسې کور ته تلم انارو پسې به مې ټول بازار لټوو چې وابه مې خيستل نو بيا به د کور په لور تلم همدا ډول د مور پلار او استاذانو دوعاګانې راته کولې.

۴- زه په طالبی کې ډېر ذهين ووم د استاذانو د پوښتنو ځوابونه مې صحيح ويل همدرسو ملګرو ته به مې تکرار کاوه همدا ډول چې کوم کتابونه به مې ويلي وو هغه به مې طالبانو ته تدريسول نو زه د طالبی په زمانه کې هم شاګرد ووم اوهم مې شاګردان درلوده دا هغه څه ول چې ماته يې أمېدونه او هيلې رابښلې چې راتلونکې کې درس به کووم او ښه کامياب درس به وي.

**پوښتنه**: ستاسې دطالبی په دور او وختونو کې عمده سختياني او مشکلات څه و؟ او په مخ کې موکله داسې موانع پيښ سوي چې درسونه مو له ځنډ او ځنډ سره مخ شوي وي؟

**جواب**: دا د انقلاب وخت و دا تنظيم پرستي يواځې له مدرسې بهر نه وه مدرسې ته هم داخله شوه مدرسې ته په داخلېدو د طالبانو تر مېنځ دومره نفاق پيدا کړو ځوک حزبيان شول ځوک پکې حرکتيان حرکتيان بيا په دوه ډلې شو منصور صيب جدا شو له مولوي محمد نبي صيب څخه نو دغه زيات جنجال پيدا کړو اوس ماته داسې ياديږي چې دې يو تنظيم والا طالبانو به پوستړي را وړې نو هغه به لګولې وې په دېوال باندې او په هغې باندې طبعاً ايتونه او احاديث به پرې ليکل شوي وو نو د بل تنظيم طالب ما ليدلی چې دا پوستړ راشکولی اوپه ناپاکوځايو کې غورزولی تر دې حده پورې دا اختلافات ورسېدل چې يو په بل به يې خطرناکې ټاپې لګولی په ضلع کوهاټ کې دا مسئلې ډېرې وې نو د هغو اختلافاتو له امله ذهني پرېشانی هم وې او کله کله به اختلافات دې حد ته ورسېدل چې مدرسه به معطله شوه يو ورځ دوه ورځې به سبقونه نه ول نو په دې سلسله کې مونږ ته به ډېر زيات تکليف وو، که څه هم په رخصتيانوکې به دجهادلپاره د ټولو تنظيمونو مرکزونو ته ورتلم او شرکت به مې پکې کاوه کوم خاص تنظيم ته منسوب نه وم خو په دې وخت کې له ماسره يو ملګری و هغه ملګری بيا د منصور صيب خاص سړی و په منصور صيب جميعت طلباء ضلعه کوهات هم منظور کړی و، نو هغه ماسره کمره کې اوسېدو او زما طبيعت دا و چې دا سړی بې عزته نه شي نو ما به په هغه لاس کېښودلو که څه هم د حرکت طالبان زيات ول او اکثره به پکې زما شاګردان وو هغه طالب ما ته اوس هم ياديږي راته يې وژړل ويل يې لمن درته غوړووم خداي ته وګوره مودوديت پرېږده ما ويل چې دې طالب ته به زه څنګه قناعت ورکووم ما ورته وويل سمه ده مودوديت مې پرېښودو نو هغه ته تسلي وشوه کله چې دا کال تېر شو دغه طالب ته مې وويل دوه انتخابه دي يا سياست ده يا درس ده په دې کې يو انتخاب کړه زما انتخاب دا ده دا يو کال مې چې تېر کړو يا پکې استاذان خفه شول يا پکې مدرسې معطلې شوې د هغه دې الله ماته معافي وکړي له دې څخه روسته زما انتخاب درس ده زه په سياست کې نور لاسوهنه نه کوم او تاته هم وايم چې درس انتخاب کړه هغې ويل چې زما له سياست څخه زړه نه کيږي نو هماغه يو کال داسې په پرېشانيو کې تېر شو له هغه څخه روسته الحمدالله درس ته مو توجوو کړه سياست مو پرېښوده دا اختلافات ډېر زيات وو زه په

روستم کې ووم هلته کسان راپسې راغلل د خوست کسان ماته یې دا خبره وکړه که د قوم په سطحه مو یو تنظیم جوړ کړی وی ما ویل له دومره اختلافاتو سره سره ناممکنه ده چې د قوم په سطحه طالبان سره یو شي ماته یې ډېر تشویق راکړو ما هېڅ قناعت ورسره نه کړو اخر کې یو طالب ډېر داسې بزرګ غوندې وو هغه وویل مونږ تاسو په کوشش باندې مکلف یو زه درته وایم پورته شه کوشش مونږ سره شروع کړه که چېرته دا کار نه کوي د الله په نېزد به د قیامت په ورځ ته مسؤل یې نور کیږي که نه کیږي هغه د الله کار ده خپله په دې جومات کې داسې کسان وو چې مونږ دا د سیاست خبرې پرېښې وې خو الحمدالله تر مېنځ مو دومره مینه اوصمیمیت و .

ضلع کوهاټ کې زمونږ د قام خلک ډېر زیات وو هلته مویو تاریخ وټاکلو هغه ځای ته چې لاړو طالبان ډېر په شوق راغلل د هر تنظیم والا خلک و نو هلته چې خبرې وشوې د طالبانو شوق مې وکتو بیخي شجاعت یې راکړو نو یو شورا مو منتخب کړه د خوست په قومونو کې غټ قوم زمونږ ده بیا په دې کې قومونه قومونه دي نو له قوم مو دوه دوه کسان شورا ته وټاکل تقریباً د شلو دېرشو په مابین کې شول دا نو د قومي شورا څخه د خپل قوم استازی یو زه وم یو بل راسره و نوبیا چې کېناستو انتخاب د صدر او ناظم کېدو نو ټولې شورا په اتفاق زه انتخاب کړم او ماته خو پته وه چې اختلافات ډېر شوي و دلته کې زه د طالبانو په طبیعت پوهېدم چې د دوي د وخت جذبه او روسته د فکر او سوچ سره ډېر فرق لري نو اوس خو یې د جذباتو له امله چې اکثره زما شاګردان دي دا فیصله یې وکړه روسته به دوي ته شیطاني وسوسې پیدا کیږي نو دا نظم خرابیږي نو ما یو مشر ملګري ته وویل دا صدارت به ته کوې هغه ویل نه ته منتخب یې ما ویل نه؛ ځکه هغه له حرکتیانو څخه و له مولوي صیب محمدنبي محمدي سره یې ارتباط و ما ویل ځکه له تا یو کس سرغړونه کوي نو هغه به زمونږ له ډلې وي نو زه هغه راکش کولی شم؛ ځکه یو خو ماته احترام او هم به زه صدر نه ووم تا ته به یې حواله کوي خو که چېرته ما څخه سرغړونه کوي زه یې بیا نه شم کش کولی اخر یې قناعت وکړو خو ویل یې په دې خلکو به یې ځنګه منو ما ورته وویل ته خلاص یې دغو خلکو ته به ووایم چې تاسو زه منتخب کړم ما دی منتخب کړ او ټولو اتفاق وکړو او الحمدالله هغه کار دومره کامیابی ته ورسېدو چې زمونږ تنظیم نه یوازې د خوست په سطحه بلکې د ټول افغانستان په سطحه نېک نام درلودو دا نور تنظیمونه ټول له دې روسته شروع شوي په لغمان، قندهار د ټولو ولایاتو او مدرسو په سطحه دا کار شروع شولو له هغه څخه روسته دا مشکلات ختم شول

**پوښتنه**: جناب که ممکنه وي او مناسبه یې بولی دطالبي په دوره کې په خپل تقسیم الاوقات لګ رڼا واچوی چې کله مو کتابونه لوړ او سخت شول، مطالعه مو څو ساعته کوله، خوب مو څومره وه او له ملګرو سره تفریح او مجلس ته مو څومره وخت ورکړی وو؟

**جواب**: دا به په لنډو الفاظو کې ووایم چې له ملګرو سره تفریح مو یا د چاي د څکنې پر وخت کې وه یا د خوراک په وخت کې وه او یا به مازدیګر تر ماښامه چېرته په چکر ووتو؛ دا درې وختونه د تفریح ول تکرار ما هېڅ کله نه ده پرېښې له ابتدا څخه یې ونیسه تر انتها پورې له ماسپښین څخه تر ماذیګر به عادتاً زمونږ تکرار وو او کله کله به مو د جمعې تېر شوی سبق به مو د هفتې په ورځ ټول تکراروو تر دې چې په لویه دوره کې هم مونږ تکرار کړی تکرار ته به ډېر په اهتمام ناست وو که به ما پرېښوو ملګرو به نه پرېښودو او کله چې امتحانونه رانېږدې شول ده مغلق مغلق ځایو تکرار به مو کولو او مطالعه به زما د ماسخوتن له ډوډۍ خوړلو روسته شروع کېده دا تدریس چې ډېر وشي نو مطالعه دومره وخت نه نیسي بیا به ما هغه ځایونه په نښه کول چې زه به پرې نه پوهېدم مغلق ځایونو کې به استاذ ته ډېر متوجه کېدم که به بیا هم ونه پوهېدم له استاذ به مې پوښتنه کوله خو ځای مې داسې نه ده پرېښی.

پوښتنه: که دخپلو څو تنو هغو استادانو نومونه راته واخلئ چې پوهیږی علمي فیض او برکت مو زیات ورڅخه اخیستی دی او دهغو خلوص او لوریني مو اوس هم په زړه اوذهن کې نقش دي؟



جواب: مولوي شامحمد خان چې کمونستانو اسیر کړ او تر اوسه ورک دی ماته یې صرف میر شروع کړې و هغه طالب یوه دوه هفتو کې یادوي ما ورځ کې یاد کړو د مدرسې ټول طالبان یې را وغوښتل وی دا وګوره په نن ورځ کې ټول کتاب یې یاد کړی یو دا چې ډېر زیات یې تشویقولو بل دا چې ترتیب ډېر زیات برابر وو په کهي مدرسه کې محمد افضل مولوي صیب، لونګین مولوي صیب له دغو ما ډېره استفاده کړې هغه د لونګین مولوي صیب دومره عجیبه علمیت وو که څه هم پاکستان کې شهرت نه وو خو داسې نکات به یې ذکر کول چې هغه بیا ما نورو استاذانو سره نه دي لیدلي او مولوي صیب محمد افضل د درس طریقه هم ښه وه زه چې ترې لاړم خط یې راپسې ولېګلو لیکلي یې و: که ناست یې را ولاړ شه او که ولاړ یې را روان شه هغه له ډېرې مینې له وجې خو زه بیا هم را نه غلم عذر مې ورته پېش کړو زه چې ترې تلم نو ما یو کتاب ترې وغوښت چې راته شروع یې کړه خو هغه د څه نزاکت له وجې راته شروع نه شوای کړای زه لاړم خفه شوم نو مولوي صیب خطونه راولېږل خو بیا هم ما ورته عذر لیک ولیکلو خو دی وفات شو په همغه کال باندې یو عبدالغفور مولوي صیب په نام باندې دي دپاکستان ازاره ضلع و او سید قریش بابا او قاضی محمد امین نورالله مرقدهم خو زما په خوښو استاذانو کې و تکمیله مې هغوئ څخه ویلي وړه دوره مې مردان کې له عبدالرازق شیخ صیب څخه چې ددوري تقریباً ټول کتابونه ورسره وو تېر کال وفات شو او په خپله منطقه کې مشهورعالم و وویله نوویلی شم چې له دغو ټولو استاذانو څخه مې دپام وړ ګټه او فیض اخیستی.

**پوښتنه**: که ممکنه وي او په یاد مو پاته وي، دهغو یوشمیر ذهینو ملګرو نومونه ذکر کړی چې په وړې او لویې دورې کې سره همدرسي پاتي شوي او ستاسي له نظره یکې له ورایه دښو او جیدونو مدرسونو نښې نښاني څرګندیدلې؟

جواب: په وړه دوره کې خو مونږ ډېر محدود کسان وو په طالبانو کې یا د ادنا درجې طالبان وو یعنې ادنا ذهن والا یا متوسط ذهن والا وو په دوي کې ذهین نه را معلومېده خو البته په لویه دوره کې حقانې ته لاړو له همغه ځای مو په کال ۱۳٦۸ هـ ش کې فراغت هم شوی ده هلته طالبان ډېر زیات وو او له پخوا ما په حقانیه کې وخت نه وو تېر کړی چې د ذهین پته راته لګېدلې وی خو یو طالب چې وو د شیر بهادر مولوي صیب غالباً د مروت به وو هغه په دې لیکنه کې ډېر تېز وو او زکاوت یې هم ښکارېده دغه شیر بهادر مولوي صیب چې وو استاذ به چې څه ویل لیکل به یې او دا ماته په دې څرګنده شوه چې کله د امتحان پرچې به نېږدې شوې نو زما هغه نمبرې بخاري، مسلم کې سل سل وې ترمذي کې سل او ابو داود کې څلور نوي او له ده څخه زه خبر نه وم چا راته وویل چې دی استاذانو ته تلو او ورته ویلي و چې ما خو په دې مدرسې کې وخت تېر کړی زه یې ورته ښودلی یم چې دا خو نوی راغلی په هغه کال د اول نمبر دویم نمبر خبره خلاصه شوه دغه سړی د دورې په کال هم ماته معلوم و چې ذهین ده.

**پوښتنه**: وئیل کیږي تاسې دطالبۍ په وخت کې هم طالبانو اوملګرو ته دمهموکتابونو تدریس کاوه، هغه کوم کتابونه و او څنګه یو طالب په دې توانیږي ترڅو په طالبۍ کې مدرس هم شي؟

**جواب**: د طالبۍ په وخت کې چې په اول کال به مې کوم کتابونه له استاذانو ویلې هغه به مې په دویم کال طالبانو ته تدریسول هغه ډېر مهم کتابونه ول بل طالبانو به د ځینو کتابو د ویلو غوښتنه کوله ویل به دا کتابونه مونږ ویلي خو ته یې بیا راته ووایه ځکه ته زمونږ همزولی یې د کتاب د مسائلو اړوند مونږ تا څخه هر ډول پوښتنې کولی شو خو استاذ څخه د ډېرې حیاء له امله یې نه شو کولی او دا داسې وخت وو چې دا عار نه بلل کېدو چې زه دې د یو طالب شاګرد یم نو زه هم شاګرد ووم او هم مې شاګردان درلودل طالبان د طالبۍ په دوران کې دې مرتبې ته هغه وخت رسېدا شي چې مطالعه تکرار ښه شوق او پاپندي سره وکړي.

**پوښتنه**: دقدر وړ شیخ صاحب! تدریس مو له کوم ځایه او کتابه پیل کړ او که داراته ووایې چې ددومره کامیاب تدریس راز مو په څه کې وو (مطالعه، داستادانو دعاګانې که بل څه؟)

**جواب**: زه لا حقانيه کې په درسو بوخت او لويه دوره مې وه چې د کهي مدرسې مهتمم د يادې مدرسې ناظم راولېګه او وويل چې کال ته مونږ خوا ته راشه خير دا کال تېر شو کهی مدرسې ته ورغلم ناظم راته ويل مدرس کېږې به خو تنخوا ځومره غواړې ما ورته وويل يو نيم زر هغه ويل چې زياتې دي خو ما په همدې ټينګار کاوه اخر يې وويل سمه ده مونږ سره مدرس شوې چې کله درسونه شروع شوه دحقانې ذهين طالب مولوي شير بهادر صيب ماسره نېزدې زرګري کې استاذ شو په لومړيو ورځو کې خو دومره طالبان ماسره نه وو خو يو دوه هفتې چې ووتې د هغه ټول طالبان زمونږ مدرسې ته را مات شول بيا دومره زيات وه چې درسګا کې نه ځايدل دارالحديث ته لاړو هلته هم نه ځايدل بيا د مدرسې جومات ته لاړو هلته مو درس ويل دغې مدرسه درسي نقشې جوړېدو وخت کې نه ووم ۷ کتابه يې راکړي وو ما له ناظم يې په اړوند وپوښتل جواب يې دا وو چې حاجي صيب ويل چې دا يې تدريسولی شي د درسو ځو اونی وتلې وې هغه طالبان چې د طالبی په وخت کې راسره شاګردان ول هغوي راڅخه غوښتنه وکړه چې قاضي راته شروع کړه ما معذرت وغوښت خو هغوي اړيې کړم .

د کاميـاب تـدريس راز دا وو چې تر شا د نيا مور پلار استاذانو دوعاوې او د پلار مې مينه او خدمتونه چې د علماؤ يې کړي ما يو کتاب کې لوستلي وو چا چې د علماؤ خدمت وکړ رب به يې کورنۍ کې علماء پيدا کړي.

**پوښتنه.** هرکال زرګونه علمای کرام له مدارسو فارغيږي خودتدريس ميدان ته دګوتو په شمير علمای کرام مخه کوي او دتدريس مسند ته ورګرزي تاسې دغه علمي انحطاط ته په کومه سترګه ګوری او دنقص ځای يې چيرته وينی؟

**جواب**: زما په آند دا اصلاً د علماؤ نقصان ده له دې امله چې دوي خپل مسلک ته د مسلک په سترګه نه ګوري او له اول څخه يې نيتونه او ارادې خرابې وي، يو خو زمونږ په علماؤ کې بزدلي ډېره زياته ده؛ وايي: زه درس څنګه وکړم؟ دويم غفلت پرې غالب ده او دريم مالي کارونو ته مېلان يا توجو زياته ده کنه دا علمي بخش داسې بخش ده چې هر يو سړي ته د خپل درجې مطابق يو کار پيدا کيږي امامت کولی شي، خطابت کولی شي، د کلي ماشومانو ته درسونه ويلی شي او تاسو ته معلومه ده د يو سړي نور لالچ نه وي محض دا اراده وي چې زه خدمت وکړم د الله لپاره نو ممکن له هغه غټو کتابو په نسبت په دې کې زيات اجرونه وي او ډېر خلک مونږ ليدلي چې په طالبی کې شهرت نه لري خو بيا دې مسلک ته مسلک ووايي توجو ورته وکړي د تو جو په وجه باندې د ابتدايي کتابو درس کولو روسته د مشهورو شيخو درجو ته رسېدلي.

**پوښتنه.** دخپلو تجربو او لوړو ژورو په رڼا کې داوس دور طالبانو ته مو نصايح څه دي چې څنګه له وخت څخه کما حقه استفاده وکړي؟

جواب: نصيحت خو زما د دې عصر طالبانو ته دا ده چې دې خپل مسلک ته د مسلک په نظر وګوري پوره توجو ورته وکړي او د خپل نيت اصلاح وکړي دا رزق د الله له طرفه مقرر ده که لګ وي او که ډېر وي نو دې پسې منډې کول پکار نه دي محض الله ته توجو پکار ده چې کله مسلک توجو وشوه د خپل نيت اصلاح وکړه او الله ته يې توجو وکړه نو ټول مالي کارونه به يې برابر شي نتيجه به يې دا شي چې په ابتدا کې خو دا ځوک نه پېژني خو په انتها کې به له مشهورو علماؤ څخه وي بل دا بايد تکرار وکړي او د کتاب مطالعه پرېنږدي او ځان بايد مايوسه نه کړي په يو ځاي ونه پوهېد او دا کتاب شاته بايد و نه غورزوي مطالعه بايد په مختلفو اوقاتو کې وکړي او دا مې تجربه کړې چې مغلق ځاي به مختلفو اوقاتو کې مطالعه کړي په دغه ځاي له بل هر ځاي ښه پوهيږي.

**پوښتنه**: عزتمند شيخ صاحب ستاسي په اند علمای کرام دتاليف او ترجمي برخي ته بائيد ځومره وخت ورکړي خواری وکړي، او ترشا مستند او معتمد تاليفات او تصانيف پريږدي؟

**جواب**: په دې ارتباط زما خپل نظر دا ده چې يو طالب فارغ شي بايد له دريو تر پينځو کالو ښه ټيټ تدريس وکړي ښه کلکه مطالعه وکړي او ځومره امکانات چې وي پکار ده په لاره يې واچوي له پينځو کالو وروسته بيا دې تصنيف او تاليف ته وخت

ورکړي له یو طرف به فایده دا وي چې دا درس به پرې بوج نه وي او له بل طرف به دا د یو مهارت څښتن شوی وي تصنیف لیکلو کې د ډار او خوف له ځان ځخه ورک کړي او لیکل شوی مضمون یو ښه ملګري یا استاذ ته ورکړي خو باید دا په دې متیقن وي چې یاد شخص ما مایوسه کوي نه او نه مې منعه کوي بلکې لا تشویقوي مې او ترغیب راته راکوي نشر. ته یې تر هغې ورکول مناسب نه دي چې د پوهې د څښتنانو له نظرونو تېر شوی نه وي او خپله یې اعتماد نه وي حاصل شوی ځکه انسان ده نیمګړتیاوې او تېروتنې خامخا ترې کیږي.

**پوښتنه** ـ جناب شیخ صاحب که دخپلو چاپ او ناچاپ اثارو په اړه لوستونکو ته معلومات ورکړی خوښ به شو؟

**جواب**: چاپ اثار زما نه شته خو ناچاپ آثار د قاضي تقریر ما لیکلی کله به مې چې سید قریش بابا څخه قاضي ویلو ما په د نکتو په شکل کې لیکه یو ملګري غوښتنه وکړه چې دې ته د کتاب ترتیب ورکړې یو ځوک به ترې استفاده وکړي بیا دا کال ممکن عزم مې وکړو چې اینده کال به قاضي وایم او صحیح به یې ترتیبوم بیا به چې ما ولېکه د خط د خرابوالي له امله به مې بیا بل ملګري ته ورکړو هغه به صفایي کوله تر څو صفا یې ولیکي سید قریش بابا ته ما ور وښود ډېرې دوعاوې راته وکړې او هماغه تقریر به په قاضي تدریساوه طالبانو ته، طالبان به یې هم تشویقول چې دا تقریر پیدا کړي.

بل سُلم مقدمه ما لیکلې وه چې طالبانو تر مېنځ ډېره مشهوره شوه بل د شرح مئته عامل ما لیکلی د طالبانو تر مېنځ ډېر متداول و.

**پوښتنه**: عصري علوم، ددیني علومو په پراختیا، تشهیر کې څومره رول لري او دیوه دیني طالب او دیني عالم لپاره چې دعصري پوهي کمال هم له ځان سره ولري څومره پرځای خبره درته بریښي؟

**جواب**: زما په نظر عصري علومو د علومو عالیو په قطار کې یو آله ده چې ډېر مفید تمامیږي لکه د مثال په ډول هغه عالم چې ژبې ورته زده وي په نسبت هغه عالم ته د دین ډېر خدمت کوی شي چې ژبې ورته نه وي زده یا هغه عالم چې په کمپیوټر پوهیږې په نسبت د هغه عالم ډېر خدمت کوی شي چې په کمپیوټر نه پوهیږي او یا هغه احادیث چې له طب سره تعلق لري هغه علماء چې طب یې ویلي وي ډېر پرې پوهیږي لکه مثال حبة سودا نو په دې کې علماء ډاکټران دا پکې خیږي چې په دې کې کوم شی انسان ته مفید ده خو په دې شرط چې عصري علوم آله وګرزی مقصود یې ونه ګرزوي.

**پوښتنه**: یوه پوښتنه به بله هم درڅخه وکړو چې کله کمونیستي رژیم سقوط وکړ او مجاهدین کامیاب شول، په ځینو ولایتونوکې ذات البیني اوتنظیمي جګړې هم پیل شوي، خودمعلوماتوله مخې ستاسو په هڅو په خوست کې دامنیت اودخلکو دسراومال دساتنې په اړخ کې نه هیریدونکي ګام واخیستل شو یعنې دخوست ولایت امنیت تاسې دخپلو شاګردانو اومجاهدینو په توسط ونیو، که دنوموړي مهم او شانداره خدمت په باب سه جزیات راسره شریک کړئ چې څنګه مو دغه کارته ملاوتړله او دکامیابی راز مو په څه کې وو؟

**جواب**: زه چې کهي کې مدرس وم زمونږ د قام یو ملا وو ما پسې به دا درې کاله مسلسل شله وه چې زما مدرسې ته به راځې بلا اخره ما پرې خپل څو ملګري هم ومنل چې دا به مدرسین کوې دا د څلورم کال درسونه مو نه وه ختم کړي کابل کې رباني (اهل حل والعقد) شورا جوړه کړه او له خوست مونږ پسې څه خلک راغلل او د کمونېستانو له راتګ وېره یې څرګنده کړه مونږ یې وبللو تر څو راشو هېواد ته او سیمه له کمونېستانو وژغورو دا چې مونږ د قوم په سطحه تنظیم درلود کار مو شروع کړ خو الحمدالله وکیلان یا ملایان یا ملا ډوله ول شاید تاسو تاریخ مطالعه کړی وي هغو انتخاباتو ته پرته له رباني نور څوک حاضر نه شول او مولوي محمد نبي محمدي په اړه ویل کېدل چې نن راځي سبا راځي خو اخر خبر را ورسېد چې مولوي صیب وایې زه نه درځم رایې رباني ته ورکړی چې له دې امله په تنظیم کې اختلاف نظر پیدا شو اخر پرېکړه وشوه چې که مولوي محمد نبي صیب راځي رایه ورکوو ځکه اهل ده بل چا ته یې نه ورکوو کله چې د رایې صندوق کېښودل د رباني او مخالف یې کېښود

خو هغه د مخالف صندوق ما ونه لېد د رایې اچولو تالار کې اختلاف شو غږ وشو وی تالار څخه ووځی خو ما د دې خبرې مخالفت وکړ زه د سټېج په لور لاړم مولوي صیب محمد نبي عمری راپسې روان وو هغه عسکرو راپېښنبود ما تقریر شروع کړ لاسپیکر راباندې بند کړ خو ما بیا هم بیان روان ساتلی د تقریر ختمېدو څخه روسته روان شوم خو امیر حمزه په نوم چې سیاف سره یې تعلق درلود وویل چې دې ده مازغه خراب شوي زه ورتاوو شوم ښه مې سپک کړل ورته ومې ویل چې مازغه خو ستاسې خراب شوي چې واک پسې منډې وهی خپله رایه مې هم ونه کاروله بیا یې سناتوران وګومارل د ولسوالیو په سطحه دې هم کار ونه کړ بیا زمونږ ځای کې دوه شوراګانې وې د امنیت شورا او قومي شورا د دوي تر مېنځ لوړې ژورې وې مونږ یې د جوړولو هڅې وکړې جوړېدو ته نېژدې وې خو زما څکه زړه نه وو که امنیت مونږ ته راکړې مسؤلیت زما غاړې ته لویږي مونږ جلالدین حقاني صیب ته وویل خو هغه پرېښنبودو زه بیا هم مترددوم ملګرو ویل استخاره به وکړو استخاره مې هم وکړه خو دې کار ته مې زړه نه وو دا قومنداني د حقاني صیب او حزبیانو تر مېنځ تقسیم وه حقاني صیب خو را سپارلې وه حزبیانو نه ما دا بهانه وکړه که یې حزبیان راسپاري کووم یې که نه وي نه یې کووم خیر حزبیانو هم را وسپارله ما مختلفې بهانې کولې حقاني صیب هغه ټولی راجواب او اسباب یې رپوره کړل بنو ته لاړم ګلزارجان شیخ صیب ته مې هم مشوره وکړه

په ولایت کې ظلمونه او قتلونه و نور ما هم نه شو زغملی حقاني صیب سره مې د نظامي اقدام خبره وکړه ویې منله څو سطحي کارونه مو وکړل له هغه څخه روسته خوست کې یو نظام حکومت جوړ شه اوښه اثرات الله پاکورباندې مرتب کړل.

**پوښتنه**: عزتمند شیخ صاحب! اوس چې دافغانستان اسلامي امارت لښکرو دالله په فضل امریکااوناټو تقریبا له افغانستان څخه دیوه تاریخي مقاومت اومبارزې په ترځ کې مات اوویستل یعني امارت اوس دیوه فاتح ځواک حیثیت لرې څه پیغام او مشوري لرئ چې اسلامي امارت باید له ولس، ګاونډ او دنیا سره څه ډول چلند ولري په خاص ډول دیوه اسلامي نظام په ټینګښت سره افغان ولس څنګه متحد او په زخمونو یې دملهم پټی کیږدي؟

**جواب**: د یو شي ساتل تر ګټلو ډېر سخت وي؛ مجاهدین باید حساس واوسي او مسؤلیت احساس کړي باید ټول کړه وړه د الله تعالی د اوامرو اونبوي احادیثو مطابق وي کله چې دې دواړو اصولو مطابق رفتار وشي او الله راضي شي خلک، خپله راضي کیږي؛ ځکه دا مخلوق ده دا تجربې ثابته کړې چې د روس له ماتې روسته ځینو مجاهدینو اوتنظیمو نو کوم فساد شروع کړ رب یې د محوې لپاره طالبان پیدا کړل بیا چې کله امارت نافېذ شو که څه هم دې کې شک نه شته چې یو پاک نظام وو خو بیا هم ځینو ملګرو کې عملي نقصانات وو تاسو ته معلومه ده چې "حسنات الابرار سیاٰتُ المقربین"؛ نو رب هغه مشکلات راوستل چې امریکا یرغل وکړ یا به دا امتحان وو چې رب به بد خلک له ښو جدا کاوو لکه ډېر مونږ وکتل چې په امارت کې کار کولو وروسته دامریکا په صف ور ننوتل؛

نو په اینده کې باید دا تېروتنې تکرار نه شي او یوه ګناه کوچنی ونه بولو ځکه چې رب ته څوک قریب وي خو یوه ګناه به د نوموړي په آند وړه وي لېکن د الله په نېز غټه ده که د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) له زماني بیا تر دې عصره وګورو نو د اسبابو په لحاظ سره حق مساوي نه وي ډېر کمزوری وي خو بیا هم د حق غلبه محض د الله په نصرت سره راځي د الله نصرت د راتلو لپاره څه اسباب دي لکه د امیر اطاعت، اخلاص یعنې اصلاح د نیت، اخلاص به عمل کې شولو باید هر کار د الله د رضا لپاره وي چې یو کار د الله لپاره وي بیا اختلافات نه راځي ځکه که چا ته مسؤلیت ورکړې په هغه به دروند تمامیږي او که چا ته یې ور نه کړې هغه به خوشحاله وي کله چې د نصرت دې ټولو اسبابو ته وي او د رب رضایت وي بیا دا د خلکو زړونه د الله په لاس کې دي بیا به دا ټول خلک له تاسو راضي وي.

ډېره مننه شیخ صیب چې له دومره مصروفیاتو سره مو بیاهم مرکې ته وخت راکړ.

**شیخ صاحب**: له تاسو هم زیاته مننه کورودان

# هر څه په طالب کوي؟

## آیا نور څوک هیڅ شرعي او ملي مسئولیت نه لري؟

شهید زوی

د امریکا په نوم د نړۍ د تر ټولو ستر پوځي، سیاسي او اقتصادي ځواک په مشرۍ کې د تاریخ د تر ټولو ستر پوځي اتحاد په مقابل کې د افغانانو اوږد ۲۰ کلن جهاد لله الحمد نتیجه ورکړه؛ اشغال پای ته رسېږي؛ ملک او ملت حقیقي آزادي تر لاسه کوي، هېواد ته امن راځي، پر ولس د اشغالگرو او د هغوی د گوډاگیانو له لورې د ظلمونو او وحشتونو لړۍ ودرېږي، د بد امنۍ ټغر ټولېږي، د خلکو ځانونه، مالونه او عزتونه خوندي کېږي، سوله رامنځته کېږي، شرعي نظام نافذېږي؛ هېواد ته ثبات، لویه سوکالي او خوشالي راځي.

د نړۍ یو ستر زبرځواک ته د شکست ورکولو په نتیجه کې افغان ولس په نړۍ کې یو ځل بیا د ستر فاتح ولس لقب گټي. افغانستان په یو آزاد، خپلواک هېواد بدلېږي؛ افغان شموله قوي اداره رامنځته کېږي؛ هېواد کې نور د مداخلو مخه نیول کېږي؛ د وطن د تجزیې لپاره جوړ شوي ټول پلانونه شنډېږي او هر اړخیز پرمختگونه رامنځته کېږي.

له هېواد نه مهاجر شوي او په هېواد کې دننه له خپلو کورونو نه کډه شوي ټول افغانان خپلو کورونو ته راستنېږي.

نو د افغانستان په تاریخ کې دا ورځې د خورا ستر مثبت بدلون او بې حده زیاتې خوښۍ ورځې دي.

دا ستر مثبت بدلون او ستره خوښي هسې په هسې نده رامنځته شوې بلکې د دې لپاره په تېرو ۲۰ کلونو کې ډېرې سترې قربانۍ ورکړل شوي دي.

پدې سترو قربانیو کې د ولس له ونډې نه انکار نشته؛ ولس ځان د لوی خطر سره مخامخ کړیدی؛ په خپلو کورونو کې یې طالبانو ته ځای، چای او ډوډۍ ورکړې دي او په همدې جرم د اشغالگرو او گوډاگیانو له لورې د لویو تکلیفونو سره مخامخ شوي دي؛ په تورو شپو کې یې کورونه تالاشي شویدي؛ په کورونو کې شهیدان شویدی؛ زندانونو ته وړل شویدي؛ کلي یې بمبار شویدي او د ډول ډول نورو تکلیفونو سره مخامخ شویدي.

خو له دې حقیقت نه هم څوک انکار نه شي کولای چې دښمن ته سینه طالب سپر کړه او لویه قرباني طالب ورکړه او د طالب د همدې سترې قربانۍ په برکت افغان ولس ته خورا ستر افتخارات په برخه شول.

پر افغانستان د صلیبي یرغل پرمهال چې په ټولې نړۍ خورا ستره وېره خپره وه؛ د نړۍ هر طاقت د امریکا د حکم تابع گرځېدلی و او چا یې د مخالفت تصور هم نه شو کولای؛ په ټولو انسانانو د وېرې او خوف په هماغو ورځو کې د الله تعالی د حکم سره سم د اسلام، خاورې او ملت نه د دفاع او آزادۍ په عزم طالب د ډېرو عادي جنگي وسایلو سره د همدې ستر زبر ځواک مقابلې ته راووت؛ په تېرو ۲۰ کلونو کې له عادي طالب نه نیولې تر امیرالمؤمنین پورې ټولو د خپلو وینو او سرونو ډېره ستره قرباني ورکړه.

ددې سترو قربانیو او بې مثله استقامت په برکت لوی زبر ځواک شکست وخوړ او طالب فاتح شو خو په نړۍ کې یواځې طالب فاتح نه گڼل کېږي او نه هم ددې فتحې ثمره یواځې طالب خوري؛ نېک نامي د ټولو افغانانو ده؛ ټول افغان ولس فاتح گڼل کېږي؛

فتحه د ټول ولس افتخار دی او د فتحې سترې ګټې هم ټول ولس ته رسېږي نو دا خوښي یواځې د طالب نه بلکې د ټول ولس خوښي ده او دا افتخار هم د ټول ولس افتخار دی.

د فتحې د ساتلو مسئولیت هم یواځې د طالب ندی بلکې ټول ولس پدې اړه ستر مسئولیت لري. دا ډېرې حساسې ورځې دي لږ غفلت هم د ډېر سترتاوان سبب کېدای شي او کوچنی خطا د کلونو د سزا لامل کېدای شي.

ولسونه په خپلو کوچنیو فتحو ډېرې سترې خوښی ښکاره کوي؛ جشنونه جوړوي؛ په خپلو فتحو او فاتحینو ډېر ویاړي او ډېر د قدر په نظر ورته ګوري.

فاتح طالب له چا قدر او اجر نه غواړي؛ وایي: هر څه مې د الله تعالی لپاره کړیدي او له الله تعالی یې اجر غواړم.

د پوهنتونونو محصلین، د لیسو شاګردان، استاذان، پوهان څېړونکي او آزاد ژورنالستان که طالب ته د قدر په نظر نه ګوري، ندې ګوري لږ تر لږه دې عظیمې فتحې ته خو دې د قدر په نظر وګوري او خپل ملي مسئولیت دې ادا کړي.

دا د ټولو افغانانو مسئولیت دی چې پدې سترې فتحې د الله تعالی او د ټولو هغو هېوادوالو شکر ادا کړي چې په روان جهاد کې یې قرباني ورکړیدي. همدا راز ددې فتحې د ساتنې لپاره هڅې د ټولو ملي او شرعي فریضه ده.



بادار ولاړ او غلام یې لګیا دی د بادار د اهدافو د ساتنې لپاره ټول ولس د سرنوشت سره لوبې کوي او د خپل واک د بقا لپاره د ملت هر ډول تاوان، هلاکت، ذلت او رسوایی ته یې ملا تړلی ده؛ د غلامې ادارې مشر ښه په جهر خپلو وسلوالو ته وایي چې تاسو د نیو یارک او واشنګټن ساتونکي یئ!

نو د اشغالګرو د اهدافو د تحقق په خاطر د لاسپوڅو ملت دښمني ټولو ته ښه روښانه شویده او د طالب اخلاص، د خپل دین، هېواد او ملت سره مینه هم هر چاته معلومه شویده او پدې هم هر څوک پوه دي چې د راتللو سره یې ډېر خیرونه او ښېګڼې تړلي دي.



نو پدې حساسو ورځو کې تر بل هر وخت ددې زیاته اړتیا ده چې ټول ملت ټولې خبرې هېرې او د خپل ستر افتخار د بقا او ساتنې لپاره سره لاسونه یو کړي.

د اشغال او د اشغال د ناخوالو نه د هېواد او ملت د آزادولو لپاره په روان جهاد کې شرکت یواځې د طالب نه بلکې د ملت د هر فرد مسئولیت؛ د کومو خلکو نه چې تر اوسه غفلت شوی وي او برخه یې پکې نه وي اخستې نو وروستی وخت چې د نتیجې د مرتب کېدلو او مزد اخستلو وخت دی په همدې وخت کې که یې د حق ملګرتیا وکړه امېد دی دا به د فوت شویو فرصتونو تلافي وګرځي او الله تعالی به د حق دا ملګرتیا په جهاد کې حساب کړي.

الحمد لله د مجاهدینو کمی نشته او په عسکري ډګر کې دښمن له کاره لوېدلی دی خو په تبلیغاتي ډګر کې غربي بادار او غلامې ادارې خپله تبلیغاتي دسګاه ډېره فعاله کړیده او دواړه د مجاهدینو د بدنامولو او د روانو پرمختګونو د مخنیوي لپاره ډېر دروغجن تبلیغات کوي. نو په تبلیغاتي ډګر کې د اسلام، ملت او هېواد خواخوږو علماؤ، محصلینو، استاذانو، لیکوالانو او د څېړونکو فعالیت ته ډېره اړتیا ده.

په ځانګړې توګه په سوشل میډیا کې د فعالوځوانانو نه دا دردمندانه غوښتنه ده چې تاسې پدې وخت کې ډېر څه کولای شئ؛ د خلکو سره د ګوډاګې ادارې د وسلوالو د ناوړه سلوک او ظلمونو او د طالبانو په لاس د فتحه کېدو نه پس د خلکو د خوښیو ښکاره کولو په اړه له خپل لوري ښه راپورونه برابرولای او پرمټ یې هېوادوال له حقایقو خبرولای شئ.


د هلمند په "لښکرګاه" ښار کې د امریکايي الوتکو له بمبار وروسته د محمد انور خان لیسې یوه څنډه

د غلامۍ ادارې له لورې بازارونه، روغتونونه، د طالبانو په لاس په نیول شویو ولسوالیو کې د ولسوالیو د مرکزونو په شمول عامه تاسیسات بمبارېږي او پکې خلکو ته د سر او مال لوی تاوانونه ور اوړي؛ تاسې ددې وحشت عکسونه او ویډیوګانې جوړولای او خپرولای شئ چې به ورسره د غلامۍ ادارې وحشي او ملت دښمنه څېره ملت او ټولې نړۍ ته نوره هم روښانه شي.

همدا رنګه د دښمن د دروغجنو ادعاګانو د ردولو لپاره هم تاسې میدان ته راوتلي او په ډېره ښه طریقه خلک پوهولای شئ. داسې نده چې هر څه به طالب کوي او ولسي خلک ګیني هیڅ شرعي مسئولیت نه لري.

رښتیا دا ده چې په اوسنیو حساسو حالاتو کې څرنګه چې پکار وه ځوانانو خپل مسئولیت هغسې ادا نکړ؛ په عمل کې داسې ښکاري لکه بل څوک چې هیڅ شرعي او ملي مسئولیت نه لري.

تاسې وګورئ! د سپین بولدک د فتحې په دویمه یا درېیمه ورځ غلامۍ ادارې ادعا وکړه چې بولدک یې له طالبانو بېرته ونیولو چې ورسره ټولو مسلمانانو کې ډېر تشویش خپور شو.

اوس دا څومره اسانه خبره وه چې یو څو ځوانانو د بولدک بازار کې یوه ویډیو کړې او ټول خلک یې په ښه هنر پوه کړي وای چې دا بولدک او دا پکې طالبان دي نو د کابل ادارې ادعا غلطه ده. خو متأسفانه چې یو ځوان هم دا زحمت ونکړ تر دې چې پخپله طالب ژورنالست ښار کې د خلکو سره مرکې وکړې او ثابته یې کړه چې بولدک د طالبانو په لاس کې دی.

داسې د نورو ولسوالیو د بېرته نیولو ادعاوې هم وشوې خو څوک یې د رد لپاره په میدان کې ونه لیدل شول.

ځوانان دې فکر وکړي که خدای مکړه د اشرف غني اداره د څه وخت لپاره پاتې شي، ملېشې رامنځته شي او پخواني قاتلین، غله او لوټماران پر ملت مسلط شي د ملت به بیا څه حال وي؟

# له پکتيا تر لوګره د برياو په وزرو کې!

عاکف مهاجر



په دې وروستيو کې د هېواد په لر او بر کې د مجاهدينو پرمختګونو دُښمنان او دوستان ټول حيران کړل او تر دوه سوه څخه زياتې ولسوالۍ يوازې د دوه و مياشتو په موده کې د دُښمن له شره خلاصې شوې. موږ هم د پکتيا او لوګر ولايتونو ځينو مفتوحه سيمو ته تللي وو، په دغه ليکنه کې به د همدغو سيمو د سترګو ليدلی حال درته ووايو. د فرهنګي کميسون د ختيځي حوزې له مسؤل ښاغلي عزيزي صاحب سره مو تر مجلس، لارښونو او دعا اخيستلو وروسته د پکتيا له ډنډپټان ولسوالۍ څخه مطبوعاتي خدمت ته متې بډوهلې، پټان ولسوالۍ له ډيورنډ فرضي کرښې سره پرته ده

په پټان ولسوالۍ کې مو د دغې ولسوالۍ ولسوال مولوي عزيزالله مستقيم ته د دغې ولسوالۍ په امنيه قومندانۍ کې څو شېبې انتظار وکړ هغه له قومي خلکو سره په مجلس بوخت و، خو وروسته له څه وخت تيريدو د امنيه قومندانۍ مېلمستون ته هغه مهال راننووت چې موږ له ملکي ولسوال او څه نورو مجاهدينو سره ناست وو. د مولوي مستقيم له راتلو سره سم مو روغبړ وکړ وروسته د هغه ساده او عادي ناستې زموږ مجلس نور هم ښکلی کړ.

د مرکې غوښتنه مو ترې وکړه خو په خندا يې را غبرګه کړه داسې ستړی مو راګېر کړم څه به درته ووايم؛ خو ژر ژر مو کار برابر کړ. مرکه مو پيل کړه، د پټان ولسوالۍ په ټول وضعيت باندې مو ورسره مرکه وکړه، جالبه يې دا وکړه چې د مجاهدينو ښه چلند په خلکو دومره ښه اثر کړی چې هره ورځ هغه عسکر چې له ځان سره يې وسلې وړې وې بېرته خپلې وسلې راوړي او تسليموي يې. همدا نن يې هم لسګونه ميله وسله راوړې چې شمېر يې اويا ميله ته رسېږي، پرون هم همدغه حال و.

هغه د ولسوالۍ د نيولو په اړه وويل: ولسوالۍ د الله په نصرت، د مجاهدينو په همت او د ولس په همکاري لاسته لوېدلې.

د ډيورنډ فرضي سيمې په اړه يې وويل چې موږ ټولې سرحدي پوستې او کنډکونه بېرته فعال کړي، ټولې هغه سيمې مو تر واک لاندې راوستي چې د افغانستان خاوره ده او چاته به يې هم د يوې لويشتې د تصرف او غصب اجازه ور نه کړو.

همدا راز مو ټولې هغه دولتي ودانۍ وکتلې چې تازه دښمن مجاهدينو ته پرې ايښې وې چې ساتنې ته يې خورا زياته توجه کېدله او ټولې الحمدلله روغې رمټې وې. په دغه ودانيو کې مو هغه کوټه هم وليده چې د امنيه قومندان ځانګړې کوټه وه او يو ډبل بيډ پکې ايښی و چې په دوه بالښتونو او ښايسته پالنګ

ښکلې شوی و، ملګرو راته ویل دا د ولسوال او حیا دې وي د هغه د هلک دوه بالښتونه او د خوب ځای دی.

پټان کې مو ولسي خلک هم ولیدل، دوی د طالبانو راتګ ته ډېر خوشاله وو، هېڅ ډول تشویش یې نه کاوه او همدا یې ویل موږ له کلونو اسلامي نظام ته انتظار کړی زموږ قربانیو رنګ راوړی او دعا مو قبوله شوه.

پټان ولسوالي له ډیورنډ فرضي کرښې سره پرته ولسوالي ده. په دغه ولسوالۍ باندې تېرېدونکو د باروړونکو موټرو موټروانانو هم له مجاهدینو ډېرې ښې خاطرې لرلې او ویل یې مخکې له ماښام وروسته د غلو وېره وه، هره پوسته کې راځخه زر او دوه زره روپۍ اخیستل کېدلې اوس هغه هر څه ختم شول سر او مال دواړه مو خوندي دي.

## ځمکني:

له پټهان وروسته د ځمکنیو ولسوالۍ ته راغلو، له پټهان تر ځمکنیو لار د طبعي ښکلا ځخه ډکه او سړک غاړې ښایسته کورونو باندې نوره هم ښایسته ښکارېده. په دغه ولسوالۍ کې مو د ولسوال، استخباراتو مدیر او نورو مسئولینو سربېره د ولایت مسئول حاجي حمزه صاحب هم ولید، خو لومړی مو دلته هم له ولسوال قاري جنت ګل عمر صاحب سره ولیدل او مرکه مو ورسره وکړه.

قاري صاحب چې په لومړیو کې د استشهادي کنډک استاذ او ملګری و، ډېر حلیم، مینه ناک، مخلص، متواضع او تقواداره انسان و. قاري صاحب هم د پټهان د ولسوال په څېر د ولسوالۍ د جهادي وضعیت او ادارو د بېرته فعالېدو، دولتي ودانیو د ساتنې، بیت المال ته د ډېرې توجه خبرې راسره وکړې.

خو مهمه خبر یې دا وه چې زموږ ارمان د ولس خدمت، دوی ته هوساینه او ارامي راوستل او اسلامي نظام ټینګښت زموږ او د دوی خاصه ارزو وه او ده. اوس خدای جل جلاله په دغه نعمت نازولي او ورته نیږدې کړي یو. د ولسوالۍ نوې ودانۍ چې په عصري ډول ترمیم شوې وه لا یې ادارې نوې فعالې خو په لیدلو یې د سړي وطني احساس تازه کېده.

د ځمکنیو ولسوالۍ شهرنو بازار چې د جانیخېل، پټهان، احمدخېل، لجه منګل، میرزکي او آریوب ځاځیو لپاره مرکز بلل کېږي مهم بازار دی، چې اوس یې خلک له امنیت ډېر خوښ و او ویل یې چې دلته غلاو، نشه‌یانو او باجګیریو پای موندلی اوس اسلامي نظام پلي شوی د زورواکو واکمني چپه شوې امن راغلی دی. دغه بازار کې سلګونه دوکانونه وو، د هر دوکان په لیدو مو سترګې داسې یخېدلې لکه شخصي ملکیت مو چې وي، همدغه راته وطنۍ مینه ښکارېده.

د بازار سفر مو پای ته ورساوه او کنډک ته د لیدو لپاره لاړو؛ خو هلته له لږ ناستې وروسته والي صاحب هم راغی، له تکلف خالي مجلس یې ډېر خوندور و. په ساده فرش له ملګرو سره ناسته یې نوره هم ښکلې وه. والي مولوي حمزه صاحب سره مو په خندا خندا مجلس روان و چې د مرکې غوښتنه مو ترې وکړه سمدستي تیار شو او مرکه یې راسره شروع کړه.

د ولایت د جهادي وضعیت ولسوالیو د فتحو، ملکي ادارو د فعالېدو او نورو اړوند موضوعاتو مو ورسره خبرې وکړې چې هغه هم دا ټولې فتحې د الله نصرت او د ولس همکاري بلله.

د والي صاحب مجلس کې مو یوه عجیبه دا ولیدله چې یو ملګری یې راوغوښتلو او ورته ویل یې ګوره دا بوټي او ونې چې شنې دي همداسې شنې یې غواړم، د دې ساتنه ستا مسئولیت شو، که وچې شوې بیا یې له تا پوښتنه کوم، خو هغه ورته ویل دا جنراتور ډېر غټ دی او مصرف یې هم زیات دی. په اوبو کولو یې ۶۰ او یا ۷۰ لیټره تېل غواړي. والي صاحب ورته ویل که سل لیټره یې غوښتل هم درکوم یې، خو که وچې شوې تا نه یې پوښتنه کوم. د والي صاحب ټول ټینګار د ملکي ادارو په فعالولو او ولس ته په ښه خدمت وړاندې کولو باندې وو.

دلته په ځمکنو ولسوالۍ کې مو د دعوت او ارشاد او جلب او جذب کمېسیون د ختیځې حوزې مسئول شیخ خالد صاحب سره هم ولیدل.

ببګاه ته د جمعې شپه وه، له هغه او د جنوبي حلقې د دعوت او ارشاد مسئول مولوي راز محمد او د پکتیا د دعوت او

ارشاد مسئول مولوي مبارز سره يوځای د شپې لپاره لاړو. کوربه مو ډېر مېلمه دوسته و، زموږ يې ډېره ښه مېلمه پالنه وکړه، راته ويل يې تاسو خبريالان ياست، موږ چې څه درته ووايو هغه نشروئ، دلته پخوا ډېر ظلمونه شوي که تاسو يې نشر کړئ بيا به کابل ته څنګه ځئ کله به مو امنيت پرېږدي، تاسو کوم تلوېزون سره کار کوئ.؟

د شپې مو له شيخ صاحب سره لږ او ډېر مجلس وکړ، مولوي راز محمد او مولوي مبارز صاحب د پکتيا په وروستيو فتوحاتو کې د دعوت او ارشاد د رول په اړه ورته وضاحت ورکړ، په پای کې يې پرېکړه وکړه چې سبا ورځ به د شهرنو بازار جومات کې خلکو ته وينا کوي.

سبا همداسې وشول زرګونه خلک راټول شوي وو، شيخ خالد صاحب ورته وينا وکړه او ټولو خلکو له اسلامي امارت ملاتړ اعلان کړ، ژمنه يې ورسره وکړه چې خپل خپلوان به د کابل ادارې له ليکو راباسي، چا چې د بيت المال وسلې وړې وي بېرته به يې تسليموي. دغه دوه پوړيز جومات چې ستر انګړ او برنډه يې هم لرله په يو وخت کې پکې له لس زرو زيات خلک ځايېدل. د پکتيا په کچه لوی او ښکلی و.

له شهرنو وروسته له شيخ صاحب سره يوځای ځاځي اريوب ته ولاړو، تر اريوب پورې تللې لاره کې ځينې ښکلې درې وې چې راز محمد مولوي صاحب به يې کيسې کولې، مجاهدين به په دغه دره کې مېشت وو، د دغې پوستې تر څنګ به د شپې په پټه تېرېدو يوه شپه دغو رڼو اوبو کې روان وو غږ مو لږ لوړ شو، له پوستې راباندې ډزې شروع شوې، اوس خو لله الحمد دا دی ازاده ازادي ده، هغه ځای يې هم راوښودلو چې د امارت له سقوط وروسته دوی په امريکايانو لومړی کمين وهلی و او څو امريکايي ټانګونه يې په آر پي جي (راکټ لانچر) ويشتلي وو.



د پکتيا ولايت ځاځي اريوب ولسوالی.

د اريوب ځاځيو لور ته تاو شوې لارې څخه وړاندې د ستو په نوم وړوکی د څو خټينو دوکانونو بازار و چې په ليدلو يې هغه پخوانی وخت سرې ته وريادېده، مخکې لاړو لاره کې يو ځای ماشومان راتاو وو، سپين بيرغ يې نيولی و، د لرګي ټوپکې يې راخيستي وې. څو نور ماشومان لرې ولاړ وو.

لومړنيو ماشومانو ويل هغه دې اربکيان مو پسې واخيستل، ټول وتښتېدل، نور نو احمدخېلو ته تاو شوې لار باندې ورتاو شو. دا خامه لار وه له چړايي چې خلاص شو څو رينجر موټر او امبې ټانګونه ولاړ وو، چې سپين کليمه دار بيرغ باندې ښکلي او ښايسته ښکارېدل، ملګرو ويل دا د احمدخېلو ولسوالی ده، څو انځورونه مو واخيستل، شېبه وروسته مو توېتر ته پورته کړل او ورسره و مو ليکل، د احمدخېلو ولسوالی د سپين بيرغ تر حاکميت لاندې، له احمدخېلو د آريوب ځاځيو لور ته روان شو، لاره کې رڼې اوبه روانې وې، شاوخوا يې ګڼ ځنګل و، يو مجاهد

ويل موږ به کله دغه ځنګله ته راتلو، همدلته لږ ودرېدو له څو شېبې دمې وروسته بیا روان شو، یو وخت څو دوکانونو ته ورګډ شو. ویل یې دا د اریوب ځاځیو بازار دی، ما نو د ښهرنو بازار داسې ګاڼه، چې د پکتیا هره ولسوالۍ به داسې رنګین او ښایسته بازار ولري، خو خیر غرمه وه موټر مو ودراوه. یو هوټل چې په پاس منزل کې و، هغه ته ور پورته شو، ډوډۍ مو وخوړله او بیا د ولسوالۍ په لور روان شو، دا چې د ماسپښین لمونځ مو نه و کړی د ولسوالۍ سره مخامخ مدرسې ته لاړو، د مدرسې مابین کې لاسي پمپ و چې د اودس لپاره به دې هلته لوټه ډکوله، اودس او لمونځ مو وکړ وروسته مو دا څو ودانۍ وکتلې او بیا د روکیانو بازار ته لاړو، خو دا چې دغه بازار له کلونو د طالبانو په سیمه کې و، ګڼه ګوڼه یې د ولسوالۍ له بازار زیاته وه.

په سبا سهار نهه بجې شاوخوا بېرته د ولسوالۍ ودانۍ ته راغلو. همدلته شیخ خالد صاحب د سهار لخوا مجاهدینو ته د یوې غونډې په ترڅ کې وینا وکړه، د اسلامي امارت لوایح یې ورته بیان کړل، ولس سره د ښه چلند توصیه یې ورته وکړه. همدا راز یې له ماسپښین څخه وروسته ولسي خلک راوغوښتل، لومړی د جنوبي حلقې د دعوت او ارشاد مسئول مولوي راز محمد صاحب څو لنډې خبرې وکړې وروسته شیخ خالد صاحب هر اړخیزه وینا وکړه او له ولس یې د وروستیو همکاریو مننه وکړه.

د شیخ صاحب له وینا وروسته د اریوب څو قومي مشرانو هم خبرې وکړې چې مدیر اکبر او ملک حقیار یې مهم ویناوال وو، دوی مجاهدینو ته هرکلی ووایه او له اسلامي امارت یې ملاتړ اعلان کړ. آریوب کې مو هم ټول مسؤلین ولیدل چې خپلو مجاهدینو ته یې ولس سره د ښه چلند سپارښتنه کوله او د دولتي ودانیو د ساتنې ټینګار یې کاوه.

ولسوال قاري عزت الله مخلص صاحب چې د ښایسته څېرې او ډېر حلیم مزاجه او د ښو اخلاقو څښتن و. د اریوب ولسوالۍ بازار کې حالات عادي و، مجاهدینو د امنیت لپاره تدابیر نیولي وو، د خلکو څورونو او د خلکو د مالونو غلا کولو پای موندلی و، اسلامي نظام پلي شوی و.

له اریوب ځاځیو بېرته سبا ورځ د احمدخېلو ولسوالۍ ته هغې غونډې ته د ګډون لپاره لاړو چې د شپږو ولسوالیو قومي مشرانو او د اسلامي امارت له لوري د پکتیا ولایتي مسئولینو سربېره ځینو نورو لوړپوړو مسؤلینو هم برخه پکې اخیستې وه.

د احمد خیلو ولسوالۍ په حسن خېلو سیمه کې غونډه نیول شوې وه، خو لاره یې ستومانونکې وه، که څه هم د ونو په منځ کې تللې لار وه چې شاوخوا او بره سیمه یې ټوله ونو نیولې وه، خو دا چې زموږ تلوار و د لارې تنګوالي یو څه ستړي کړو. یوولس بجې شاوخوا د غونډې ځای ته ورسېدو چې زموږ له رسېدو سره غونډه هم پیل شوه.

لومړی د قرانکریم څو مبارک ایاتونه تلاوت شول، وروسته ویناوالو په خپل وار سره ویناوې وکړې، د اسلامي امارت مجاهدینو ولسي خلکو ته ډاډ ورکړ او د همکارۍ غوښتنه یې ترې وکړه چې ولس یې هم په یو غږ ملاتړ اعلان کړ او د کلکې همکارۍ ژمنه یې وکړه.

غونډه دوه بجې شاوخوا په داسې حال کې پای ته ورسېده چې د اسلامي امارت د مسئولینو له لوري قومي مشرانو ته لونګۍ وتړل شوې او ځینو ته یې همداسې ورکړې، وروسته دعا وشوه او د خوراک څخه وروسته په صمیمانه توګه یو له بل رخصت شول.

دلته یو شی احساسېدل هغه د طالبانو حکومتولي وه، ملکانو ته تحفې او څو ډوله خواړه ورکول یې داسې ښکارېدل لکه یو څوک چې د حکومت مېلمه وي. د غونډې په پای کې یو شی چې عجیب راته ښکاره شول هغه د والي صاحب د مجاهدینو په منځ کې په سپیره فرش ناسته او مجلس و.

والي صاحب ډېره وهلې وه، ډلې ډلې مجاهدین راتلل چا د وسلو، چا د پیسو، ځینو نورو بیا د مهماتو او رینجرو غوښتنه کوله خو هېچا ته یې هم نه په خوله نه راتله. تر دې چې یوه ډله مجاهدین یې هم بېنوا ونه لېږل، آن تر مازیګر همدلته ناست و، د مازیګر له لمانځه وروسته والي صاحب د جنګ د لومړي خط په لور روان شو، د آریوب او احمدخېلو ترمنځ تللې لار پورې موږ هم په یو موټر کې ورسره لاړو. ویل یې که خط ته راسره ځئ خو

بیایم مو، ما ټوکه ورسره وکړه او د دوه ورځو مخکې یوه کیسه مو ورته وکړه چې له یو مجاهد مو وپوښتل والي صاحب به چېرته وي هغه ځواب راکړ چې هغه به خط کې بیا غاړې ته پیکا اچولې وي.

والي صاحب مو رخصت کړ. د شپې لپاره د آریوب ځاځیو د ګوي سیمې ته لاړو. کومه چې له ډیورنډ فرضي کرښې سره پرته ده، پر پوله تېر شوي اغزن تار ډېر ځورونکی و، اکثر ځایونو کې په لوړو غونډیو تېر شوی و، خو دا سیمه په زرغونوالي او ښایست کې په دنیا جنت و، دنګو ونو او ښایسته هوا یې سړي ته نوی ژوند ورکاوه او داسې برېښېدله چې دا دنیا له غمونو جلا ده، د دغې سیمې مسئول حاجي مقیم زابلی و چې د رښتیني مجاهد مینه پرې ماتېده او ملګري یې هر یو د تقوا او ملنګی یو مثال او مېلمه پاک خلک وو.

سبا ورځ یې هغه معسکر ته بوتلو چې دوی د ملګرو لپاره جوړ کړی وو، دا معسکر اوس په یوه ازاده سیمه نه بلکې د یو سرحدي کنډک په منځ کې و چېرته چې ځو امبیان او رینجر ولاړ وو، دهشکې او زیکویک پرې نصب شوي وو، ځو شېبې مو همدلته تېرې کړې وروسته بېرته د ګوي د دروازې لوري ته لاړو. هلته مو حاجي مقیم سره یوه لنډه مرکه وکړه، د ډیورنډ فرضي کرښې په اړه مو ترې وپوښتل، هغه د پټهان د ولسوال مستقیم مولوي صاحب خبره یې راته وکړه، چې د هیواد له لویشت لویشت ځخه به دفاع او ساتنه کوو خلک دې د کابل اداري په زهرجنو تبلیغاتو نه تیروځي طالبان د حریت، استقامت او په هیواد مئین قشر ده.

تر دې وروسته د احمدخېلو ولسوالۍ او امنیه قومندانۍ د ودانیو لیدلو ته لاړو، ومو لیدل چې دغه ودانۍ هغسې روغې رمټې دي، مجاهدین پکې مېشت وو او ټولې اداري یې فعالې وې.

په احمدخېلو ولسوالۍ کې هم شیخ خالد صاحب د یوې غونډې په ترځ کې ځینې مسئولینو او د ولسوالۍ مجاهدینو ته په ګډه وینا وکړه، هغوی یې د اسلامي امارت د لوایحو عملي کولو ته راوبلل او ولس سره د ښه چلند یې بار بار ورته ټینګار وکړ.

تر دې وروسته مو د لجه منګل او میرزکي ولسوالۍ وکتلې، د میرزکې ولسوالۍ د دولتي عسکرو په دویم وار نیولو څه حصه تخریب شوې وه او چې عسکر ترې وتل ځینې سیمې یې الوځولې وې چې دا ډېرې دردوونکې وې. په دغه ورځ مو هغه ګمرک هم ولید چې د دغو ولسوالیو له نیولو وړاندې د مجاهدینو ګمرک و او له باروړونکو موټرو یې همدلته د ګمرک پیسې اخیستلې.

مجاهدین یې ډېر مینه ناک او د ښه چلند خاوندان وو، ګواکې داسې روزل شوي وو چې باید هر چاته مینه ورکړي، په ورین تندي او مسکا ورسره خبرې وکړي. دوی د ونو لاندې ناست وو، داسې د دنیا له خواهشاتو لرې ښکارېدل لکه چې دنیا ته نه وي پیدا شوي، یوازې د مجاهدینو د پرمختګ خبرې یې کولې او یو بل ته به یې په ورین تندي او مسکا ځواب وایه.

## لوګر:

تر دې وروسته بیا د لوګر به لور رهي شو، د ځاځي آریوب له ښایسته او طبعي ښکلا لرونکو سیمو څخه د ازرې قاسم خېلو سیمې ته ورسېدو دا نو یوه خړه پړه او سپیره سیمه وه، موږ مازیګر ناوخته له سیمې داسې مهال تېرېدو چې لمر نور دغه ورځ له غرو پناه کوله، له دغې سیمې چې تېر شو، یوه غونډۍ مو مخې ته راغله چې دا د لټیکورې په نوم یادېده، دلته یوه خیمه وه چې د دوکان کار ترې اخیستل کېده، زه امید دوبندوال او یو بل ملګری څو شېبې همدلته دمه شو، چای مو راوغوښتلو، لږ دمه مو جوړه کړه، وروسته بیا روان شو، د دوبندي په ښایستونو پوښلې درې ته ننوتلو چې ونو او ښایسته اوبو یې ښکلا یو په دوه کړې وه، لاندې د شپې توره تیاره، د اوبو شرهاری او بره د اسمان غېږ له سپینو ستورو ډکه، ښایسته سپینه سپوږمۍ دا نو عجیب ماحول و، ګواکې یو مین له تورو زلفو لاندې له خپلې مینې سره عاشقانه بنډار کوي، شپه ناوخته وه، همدلته مجاهدینو سره پاتې شو، د شپې مو یو مجاهد په همدغه ځای کې ولید چې عمر به یې تر پینځه څلوېښتو پورته و، د پیرې تقسیم مو وکړ، زما او د همدغه مجاهد وروستی پیره ورسېده، سهار نږدې و، زه چې پیرې ته په خپل نوبت راپورته شوم. ویل یې زه یې یوازې کوم ته خلاص یې ان شاءالله اطمینان دی، یو کس بسنه کوي، ته ویده شه، دا چې له عمره زیات و، باید موږ دمه ورکړې وی، خو بیا یې هم په پیره

ډېر ټېنګار زه په خپل حال خفه او د هغه په حالت بېخي حیران کړم، همدغه جهادي مینه وه، په سپینه ږیره یې له ځوانو مجاهدینو سره په ټېنګار د پیرۍ نوبت غوښت، سهار له دوبندي د مرکز په لور روان شو. د شینکي له هغو پوستو ور تېر شو چې اوس د مجاهدینو لاسته لوېدلې وې، دا پوستې اوس د ولس د قتل مرکزونه نه و، نه ترې په ولس مرمۍ ورېدلې، څو شېبې مو په پاخه سړک مزل وکړ، موټر چلوونکي ویل دغه وړاندې سیمه کې پرون عسکرو د ملکیانو موټر په ډزو وویشت څو نفره یې د یو ماشوم په ګډون شهیدان کړل، څو نور یې ټپیان کړل، نور باید وړاندې لاړ نه شو، دا خلک هر څوک دښمن بولي، هر چا باندې ډزې کوي، د ډریور په خبره له پاخه سړک چپ شو، په خامه روان شو، څو وارې په لوړه او زوره کښته پورته شو، خو څو شېبې له مزل وروسته د باري له دښتې تېر شو او د پورک سیمې ته د مولوي قدرت الله مجاهد د ملګرو مرکز ته ورغلو، مرکز څخه شاوخوا چنارونه تاو شوي و او تر څنګ یې د اوبو ټیوب ویل و، نږدې تر مازیګر همدلته و، دا چې بېګاه شپه د محمداغې ولسوالۍ د دولت کلا بېس تښتېدلی و او اوس د مجاهدینو تر واک لاندې و، د راپور جوړولو لپاره هلته لاړو، بېس ته د ورتګ لپاره د زرغون ښار له زرغون کلي ووتو، په دښته کې مو څو شېبې مزل وکړ، وروسته بېس ته ورسېدو، هلته مو د محمداغې له ولسوال مولوي حزب الله او د لوګر ولایت د نظامي کمېسیون غړي مولوي قدرت الله مجاهد سره د محمداغې او د ولایت په وضعیت مرکه وکړه، بېس کې ځینې موټر ولاړ وو چې دولتي ځواکونو د تېښتې پر مهال سوځولي وو، همدا راز مو هغه کانتینر هم ولیدل چې عسکرو د تېښتې پر وخت اور ور اچولی و، په لوګیو تک تور ښکارېدل، یاد بېس لسګونه جریبه ځمکه کې پروت و چې سقوط یې د مجاهدینو ستره بریا وه، په سبا د سرخاب کلي ته لاړو چې د اشرف غني پلرنی کلی بلل کېږي، دلته مو هغه پوستې ولیدلې چې د خلکو په کورونو کې پرتې وې او اکثره برخې یې نړولې وې، همدا راز مو د بند سره هغه لېسه هم ولیده چې له تېرو څلورو کلونو راهیسې د زده کوونکو بر مخ تړلې وه او اربکیان پکې اوسېدل.

له محمداغې وروسته مو د مرکز پراخې سیمې وکتلې چې تازه د مجاهدینو لاسته لوېدلې وې او د مجاهدینو خط آن د پل عالم بازار څنډو ته رسېدلی و، دلته مو هم د نورو ولسوالیو په څېر له ولسوال مولوي محمد خلیل ابو عرفان صاحب سره د مرکز اړوند چارو باندې وغږېدو چې هغه هم د ټولو تازه فتحه شوو سیمو نومونه واخیستل او د نیولو جریان یې راسره شریک کړ، چې اکثرو سیمو څخه دښمن د مجاهدینو له وېرې تښتېدلی و. ابو عرفان صاحب چې نیمه ورځ به یې د خوښۍ ولسوالۍ په محاصره خط کې د مجاهدینو ترڅنګ تېروله، نیمه ورځ به بیا له ولسي خلکو سره د هغوی د مشکلاتو په اورېدو کې بوخت و. له دې وروسته ماښام مهال د مرکز اړوند بابوس سیمې ته لاړو هلته مو سبا ورځ د ولایت د نظامي کمېسیون له مسئول مولوي ضیاألحق حامد سره ولیدل، مجلس یې ډېر خوږ او له مینې ډک و، لکه د مسئول نه بلکې د همزولي او عام مجاهد په څېر یې راسره ترپایه مجلس وکړ. سبا ورځ مو له نوموړي سره د برکي ولسوالۍ کې د مرکې وخت وټاکه، همداسې مو وکړه، سبا مازیګر مهال د برکي برک ولسوالۍ تازه فتح شوې ودانۍ ته مو ځان ورساوه او هلته مو ورسره مرکه وکړه او د ولایت په جهادي وضعیت یې راسره خبرې وکړې. نوموړی د منطق او دلیل خاوند و، ښایسته او جالبه مرکه یې د هېرېدلو نه ده. زه او جواد څارګر دواړه د مرکې لپاره ورته کېناستو. یو د ولایت په وضعیت بل عامې پوښتنې ترې وکړې، خو ترپایه یې ډېرښه ځوابونه راکړل.

ماښام مهال له دې ځای رخصت شو. په لاره کې مو د لوګر له جهادي مسئول مولوي احمد علي جان صیب سره ولیدل، هغه ته مو هم د مرکې یادونه وکړه، په هو یې راته سر وخوځاوه او دویمه ورځ مو همدغه برکي کې وعده کېښوده.

د دویمې ورځې په رارسېدو له مرکز برکي ته لاړو او هلته مو د لسګونه مجاهدینو یو مانور برابر کړ چې تازه نیول شویو ایمبي ټانګانو یې هم بدرګه کوله له دغه مانور وروسته والي صاحب مجاهدینو ته مختصره وینا او توصیه وکړه، بیا والي صاحب بازار ته لاړ او د خلکو شکایات یې واورېدل، د عادي سړي په څېر د خلکو په منځ کې ولاړ و، چا دا نه منله چې دا دې د یو ولایت والي وي، سبا ورځ مو له والي صیب سره بیا ما او ګران ملګري تکړه نطاق جواد څارګر صاحب مرکه وکړه او په دې سره مو سفر پای ته ورسېد، خو دا وروستۍ شېبې مو د ټول سفر څخه ډېرې خوندورې وې؛ ځکه د لوګر په شهید پروره خاوره د مجاهدینو دغه ازادانه ګرځېدنه چې زموږ له کلونو ارمان و اوس مو هغه ارمان سرته رسېدلی و او له اشغالګرو او مزدورانو څخه پاکه شوې وه.






## د شهادت ارزو

خدایه لقاء دي غواړم نور در نه څه نه غواړمه
تږی زړګی د شهادت په جام اوبه غواړمه

چې رانه تاوسي مستي حوري د جنت په مینه
یوداسي ښکلی اختتام د ژوندانه غواړمه

یوپرهارونو باندي بار درنه سینه غواړمه
بل دي د عشق په اورسینه کې سوی زړه غواړمه

د کوثر جام، د جنت حوري او غِلمان مي خوا کي
چې رانصیب دا زندګي سي بَل نوڅه غواړمه

دا چې بمونه پر سینه لکه ګلونه ږدمه
تر سپین ارمانه په لمبو کې تېرېده غواړمه

چې مشک، عمبر مي سلامی، ته ښه له لیري راځي
د تن په وینو ذوالجلاله لمبېده غواړمه

چې نه چورلکي نه چاپه وي او نه ډار له مرګي
مشهود تر هغه ژوند بیره ستنېده غواړمه

## (طالب یمه)

نثاربدري

ګل یمه طالب یمه اتل یمه طالب یمه
زه دګران عمر دپګړۍ ول یمه طالب یمه

تندر د اسمان یمه اوریمه طوفان یمه
هرمغرور بې دینه ته اجل یمه طالب یمه

فوځ د ملاعمر یم روزل شوی فولادي یم
زه د دغه کلي دې محل یمه طالب یمه

زما قانون د شریعت عسکریم د امارت
ځکه چې د حقې لاري مل یمه طالب یمه

ویاړ ده دی ولس یم قرارده دي ولس یمه
دا ولس زما دی زیه خپل یمه طالب یمه

ځار دخدای له دینه یم ځار درب په مینه یم
ونثاره زړه دهر مورچل یمه طالب یمه

آنروز که سقف خانه‌ها چوبی بود!
گفتار و عمل درهمه جا خوبی بود!
امروز بنای خانه‌ها سنگ شده!
دلها همه با بناها همهنگ شده!

جهانګیر

نه برگ گلی به شاخه‌ها میماند
نه هیچ کسی بجز خدا می ماند
خوب باش بدی مکن که از ما تنها
یک خوبی و یک بدی بجا می ماند

منیر

## د یادونو ډیوه!

لیک: مولوي منصور درمان

زړه کې دې زړه! د زړه له تله ساتم
ستا د یادونو ډیوه بله ساتم!

ستا د پرهر له هرې څېرکې لوړی
ستا هر زګېروی زخمي اتله ساتم

زره – زره لکه هنداره وجود
د سینې مینځ کې دې کابله! ساتم

د خوږ ژوندون د شتمنۍ په بیعه
هېواده! تا به له یرغله ساتم

زهٔ دې انځور ته وینښې شپې تېروم!
اولهٔ سهار یې تر ترمله ساتم

لېونی عشق دې غزل توري غواړي
لېوني عشق ته دې غزله ساتم!

ای د منصور درمان مطلوب طال به!
مینه دې زړهٔ کې مکمله ساتم!

## (دخوار ملت غمخور)

د دې خوار ملت غمخوره مجاهده
د اولس دستر ګو توره مجاهده
خداې دې موړ هځکله نه کړي بې لتانه
اې زموږ د زړه ټکوره مجاهده
ده تیارو ټغر کړه ټول له پاکې خاورې
دښمنانو ته سور اوره مجاهده
اوښکې پاکې کړه له دې مظلومو ستر ګو
خوشحالي راوړه زموږ وروره مجاهده
دنړۍ ځبرځواکونه په ګونډو شول
اشغالګر دې کړه نسکوره مجاهده
دنثار دزړګي سر دزړه درمانه
سپین روخسار پګړۍ دې توره مجاهده

(الحاج نثاراحمدبدري)

## ضرب المثل های

یک شبه مهمان، صد ساله دعاگوی
شاه می‌بخشه شاه قلی نمی‌بخشه
شیرین بیا، شیرین برو
کم بیا، کم برو تا شیرین و عزیز باشی
تا ریشه در آب است امید ثمری هست
ترحم بر پلنگ تیز دندان– ستم کری بود بر گوسفندان
همه کاره و هیچ کاره
انسان جایزالخطاست
سنگ سنگ را می شکند
سگ در خانه صاحبش شیر است
دو دل یک شود بشکند کوه را
باسیه دل چه سود خواندن وعظ
نرود میخ آهنین در سنگ "سعدی"
هزاران نعمت و یک تندرستی
خار را در چشم دیگران می بینی و شاه تیر را در چشم خود نمی بینی
از تو حرکت از خدا برکت
گوسفند را به گرگ سپردن

خوبی به جهان خوبتر از خوبی تو نیست
دل نیست که او معتکف کوی تو نیست
موی سر چیست؟ جمله سر های جهان
چون مینگرم فدای یک موی تو نیست

(مولانا)

## ځلوریزه

دروشي مو ترینه ونښکه له دوستمه
مارشالي مو ځنې وا خیسته په نره

اې د تورو خاورو لاندې قلندره
سر را پورته کړه ملا محمد عمره

دحرام مال صدقه داسی ده لکه ناپاکه جامه چی په وینو ومینځل شی. (سفیان ثوری رحمه الله)

په ختیځه حوزه کې د اسلامي امارت د تعلیم وتربیې کمېسیون مسؤل

## مولوي فیض الله حقاني صاحب ځرک سره په مرکه کې:

# په مفتوحه ولایاتو او مناطقو کې پر تعلیمي بهیر او تعلیمي ادارو هیڅ ډول بندیزونه او محدودیتونه نشته

**مرکه کوونکی: په ختیځه حوزه کې د اسلامي امارت د تعلیم وتربیې کمېسیون محترم مسؤل مولوي فیض الله حقاني (جمال) صاحب، ډېره مننه چې د مرکې لپاره مو وخت راکړ. که د مرکې تر پیل مخکې د اسلام په مبارک دین کې د تعلیم او تربیې پر اهمیت، په اوسنۍ نړۍ کې په دې ډګر کې د مسلمانانو، او په ځانګړي ډول د افغانانو، د وروسته پاتې والي پر عواملو باندې رڼا واچوئ، ډېره مهرباني به مو وي.**

ځواب: الحمدُ للهِ وحدَهُ ، والصَّلاةُ والسَّلامُ على مَن لانَبِيَّ بعدَهُ ،نَبِيِّنا محمدٌ وعلى آلهِ وصحبِهِ اَجْمَعِينْ.

وبعدُ : أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيم. بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ. قال الله تبارک و تعالی: اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّـذِىْ خَلَقَ [الآية]

وايضاً قال الله تبارک و تعالی: وَ عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓىٕكَةِ [الآية]

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: إِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا. وايضاً قال: إِنَّمَا بُعِثْتُ لأُتَمِّمَ مَكَارِمَ الأَخْلاَ ق.

د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي چارو کمېسون له محترم مقام څخه مننه کوو چې مونږ ته یې په دې حساسو حالاتو کې وخت راکړ.

په اسلام کې د تعلیم و تربیې یوازینی سپېڅلی هدف او مرام د داسې یو انسان جوړول دي، چې د رب العالمین بندګي یې د دنیا او آخرت د سعادت او بریا سبب وګرځي. دا چې اسلام یوازېنی د توحید دین دی الله تعالی له خپلو بنده ګانو د هغوی په کړنو، عباداتو او معاملاتو سره د خپل وحدانیت تثبیتول غواړي تر څو دوی د الله د احکامو او سنت نبوي، مجتهدینو او د فقهاء کرامو د تشریح مطابق خپله زنده ګي سرته ورسوي. کله چې انسان د خالق لایزال بنده ګي اختیار کړي او د اسلام مبارک دین د تعلیم او تربیې په وسیله د ورځني ژوندون د سمونپال نظام په توګه غوره کړي نو بیا دغه انسان د فلاح دارین څښتن وي او د اشرف المخلوقات د تاج یوازېنی مستحق ګرځي. دې هدف ته د رسیدو لپاره د اسلامي احکامو لومړنی حکم په (اقراء) سره شوی او په (خلق) سره یې پای مونډلی.

حضرت ادم علیه السلام او اولاد یې، د ځمکې پر مخ د خلافت د چارو د سمبالښت او د دې لوړ عظیم مسئولیت لپاره ضروري ده تر څو د دوی د خدمت لپاره پیدا شویو کائناتو عمده برخې چې د شمسي-نظام سیارې او په ځانګړې ډول د ځمکې تسخیرول د خپلې کاري دندې په لومړي ردیف کې راولي. لکه په وَ عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا کې الله تعالی ادم علیه السلام د کائناتو د نومونو او د دې فوائدو تعلیم ورکړ چې د دې تعلیم او علم په سبب یې تاج خلافت ورنصیب کړ او ملائکې په دې امتحان کې پاتې

راغلي له همدې امله رب العلمین ذات دا فارموله ورته وړاندې کړه او ورته ويې ويل، چې (اقراء) ولوله، ته هم د خلاق او بدیع ذات د هدایت سره سم نوښتګر شه او د ځمکې د واکدار په څېر د معمارۍ چارې پر مخ بوزه او دا هغه مهال شوني ده چې علم او پوهې پسې ځغاسته وکړې. همدا شان څنګه چې د شرعي او نبوي سنتو اړوند علوم د مسلمانو علماؤ ځانګړتیا او خصوصیت دی له دې سره هم مهال د ساينس او ټيکنالوجۍ اتلان هم اسلامي علماء دي ددې علومو په بېلا بېلو برخو کې يې د بې ساري پرمختګ تر څنګ هم مهال د کشف او ایجاد په میدان کې هم داسې ابداعي کارونه وکړل، چې د نني نړۍ د ټولو ساینسي- پرمختګونو بنسټ يې کېښود. د بېلګې په توګه:

د طب په میدان کې عزالدین، الجلد کې محمد بن حسن ابوجعفر الخازن، د فلکیاتو په میدان کې عبدالرحمن الصوفی، ابوالحسن المراکشی، تقی الدین الراصد او داسې نور.....

د يادونې وړ ده، چې د جذام روغتون د لومړي ځل لپاره د مسلمانان خليفه؛ وليد بن عبدالملک په داسې حال کې تأسیس کړی و، چې فيليپ نومي فرانسوي پاچا به د جذام په مرض اخته ناروغان ژوندي سوزول ترڅو دغه مرض نورو ته ساري نشي.- خو افسوس نن سبا مسلمانان چې عصري زده کړې وکړي، نو د کفارو تهذيب زده کړي، خوراک، څښاک او ظاهر هم د دوی د تهذيب لمخې جوړوي او اسلامي تهذيب او نبوي سنت د ژوند په ميدان کې عيب او پسپاتي ګڼي نعوذ بالله منها.

په کار خو دا وه چې له غربيانو او پرمختلليو هيوادونو څخه مونږ ټيکنالوژي او ساينسي علوم را اخيستي وای، چې اصل کې دا علوم د مسلمانانو ميراث دي، ځکه نن مسلمانان په ټوله نړۍ کې تخنيک او نورو پرمختلليو وسائلو ته محتاج او د غربي نړۍ حلقه بګوش غلامان جوړ شوي دي. ددې په عوض دوی کفري کړنې او تهذيب خوښوي.

اسلامي امارت دا افتخار ګڼي چې يو افغان ځوان په اسلامي او افغاني روحيه سمبال وي او کوښښ يې دا وي چې په نظامي استخباراتي طبي اقتصادي او په ټوله کې په سائنسي ـ او د ټکنالوجۍ زده کړو يو ماهر شخص تولنې ته وړاندې کړي چې د طب په برخه کې ښه مسلمان ډاکټر، په نظامي برخه کې ښه مسلمان صاحب منصب او داسې نور په اسلامي او افغاني روحيه روزل شوي وي او د اسلامي امارت په حاکميت کې د خپل مسلک مطابق د اسلام، او افغانستان ملي منافعو له پاره خدمت وکړي. نه داسې چې د عصري زده کړو لپاره خارج ته په بورس باندې ولاړ شي او يا په داخل کې زده کړې تر سره کړي او نتيجه يې بې ديني، کميونستي او يا سيکولر او غربي تهذيب وي او اسلام و افغاني عنعنات تر پښو لاندې کړي.

طبعي ده، چې په دې برخه کې، روزنيز بهير تر نورو زيات اغيزمن شوی دی، تردې پورې چې د ظاهر شاهي نظام په وخت کې د کميونستي معارف له لارې د افغان نسل د بې دينه کولو لپاره داسې يو اجماعي کار پيل کړ، چې کوم شاګرد به پوهنتون (فاکولتې) ته کامياب شو، هم مهال به د بې دينۍ او په کميونستي فکر خړوب کړای شو. بل لوی فساد يې د بهرنيانو په توسط، چې ځانونه به يې مسلمانان ګڼل، رامنځته شو، چې د ديني مدرسو طالبانو او عصري ښوونځيو متعلمينو ترمنځ يې نه جبران کيدونکی لرې والی پيدا کړ، چې د مکتبي او طالب ترمنځ د کفر او اسلام دښمني پيدا شوه او دا سلسله د کميونيستانو په دوره کې ښه ځرګنده او ښکاره شوه.

د مجاهدينو په وخت کې د جهادي تنظيمونو يواځنی ښه خدمت دا وو چې د جهادي بهير ترڅنګ يې يو متفق نصاب چمتو کړ، نو تر ډيره حده هغه بيلتون راکم شو او د امارت د قيام په وخت کې هم دا هڅه روانه وه، چې داسې نصاب چمتو شي، چې د عصري علومو متعلم په ديني زده کړو هم مزين شوی وي او په اسلامي او افغاني روحيه روزل شوی او يو مسلکي انسان ټولنې ته وړاندې کړي، خو له بده مرغه چې مغرورې امريکا او صليبيانو د اسلامي امارت نظام ونه شو زغملی او د شيخ اسامه بن لادن په بهانه يې په افغانستان او اسلامي نظام تجاوز او تيری وکړ. چې د دوی تېری په تعليم او فکري جګړه متمرکز و چې د يرغل سره سم يې د امريکا ګوډاګي اداري د مجاهدينو د دورې تعليمي نصاب يې منسوخ کړ.

او پر ځای يې په غربي مفکورې ملوث نصاب چې په بهر کې ترتيب شوي وو او اسلامي اساسات، د جهاد روحيه او نبوي سنت، اخلاق هرڅه يې ليرې کړل، د دې په عوض فرهنګ، ډومتوب، او

نور داسې مضامین یې پکې ځای په ځای کړل چې یو ماشوم په اسلامي او افغاني روحیه ونه روزل شي بلکه غیر اسلامي او سیکولریستي نظر ولري. ځکه چې دوی هم د کمیونستانو په څېر د کفر ترویجول او د اسلام محوه کول غوښتل خو لوی فرق دا و چې د پخواني جهاد په وخت کې د ښوونځي ړنګول او تخریبول، معلم او متعلم مړه کول ډېر د ثواب کار وو، ښونځي، پوهنتون، معلم او متعلم ټول د کفر یوه حصه کڼل کېدل، خو د امریکایي اشغال خلاف د جهاد په اوائلو کې د مرحوم امیرالمومنین رحمه الله ډېر د توجه وړ او جالب هدایت مجاهدینو ته دا وو؛ چې مجاهدین به د امریکایانو او صلیبیانو سره په جهاد کې تعلیمي ادارو ته هیڅ ضرر نه رسوي، د ښوونځیو وداني، معلمین او شاګردانو ته به په تعلیمي بهیر کې خنډ نه واقع کیږي.

البته دا منم چې د یرغلګرې امریکا په راتلو سره د کمیت په لحاظ به ترقي راغلې وي؛ چې مکاتب پوهنتونونه شاګردان او استاذان به زیات شوي وي خو د کیفیت په لحاظ په هر څه دومره یرغل و چې جبران یې د افغان مظلوم ولس د طاقت نه بهر دي.

ځکه دوی د نوي نصاب او تعلیم په واسطه کمیونستي، عیسایت او قوم پالنې ته او هم د یو مذهب په لحاظ غیر مذهبي یا هغه ډلو چې د بهر څخه توظیف او یا ښودنه ورته کیږي لکه وهابیت، داعشیت او د خوارجو مفکورو پیروانو ته دومره وده ورکړه چې د افغانستان د مسلمانانو مذهبي یو والي پکې له منځه تللی دی.

خو افسوس پدې کفري میډیا چې د ژورنالیزم د اصولو چې دوی دعوه کوي ورته ژمن نه دي. افتراء او دروغ نشر کوي چې طالبانو د (اسلامي امارت) په مفتوحه سیمو کې بعضي مضامین لکه تاریخ، جغرافیه او داسې نور له درسي نصاب څخه ایستلي دي. او دې ته ورته نور افواهات یې هم د میډیا له لارې پورته کړي، ځکه چې د اسلام دښمنان تل هڅه کوي چې د مسلمانانو په خلاف ناوړه او دروغجن تبلیغات وکړي.

**پوښتنه: کابل رژیم په مسلسل ډول دا راپورونه ورکوي او دعوې کوي چې طالبانو کومې ولسوالۍ په دې وروستیو کې نیولي، د دوی په خبره د طالبانو تر ټولو لومړی ګام دا ده چې د مکتبونو او علمي مراکزو دروازې بندوي او حتی وداني یې نړوي. ستاسي د معلوماتو له مخې دغسې کومه پېښه چیرته مخې ته راغلې؟ او که نه وي راغلې، له دغو پوچو تبلیغاتو څخه د دوی هدف څه دی؟**

ځواب: د لومړۍ پوښتنې په ځواب کې باید ووایو چې د اسلام دښمنانو تل هڅه کړې چې د اسلام او مسلمانانو خلاف ناوړه او دروغجن تبلیغات وکړي، خو الله جل جلاله د هغوی تبلیغات بې اغېزې کړي، او د خپل دین د حفاظت او ترقي اسباب یې برابر کړي دي. الله جل جلاله فرمايي: {يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَيَأْبَى اللَّهُ إِلَّا أَنْ يُتِمَّ نُورَهُ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ} [التوبة: ۳۲]

ژباړه: دوی غواړي چې په خپلو خولو دالله (د دین) رڼا مړه کړي خو الله د خپلې رڼا (دین) له پوره کولو پرته بل څه نه مني که څه هم کافران یې نه خوښوي..

او بل ځای فرمايي: {يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ} [الصف: ۸] ژباړه: دوی غواړي چې په خپلو خولو د الله (د دین) رڼا مړه کړي خو الله د خپلې رڼا(دین) پوره کوونکی دی، که څه هم کافران یې نه خوښوي.

لهذا دا د ماتې خوړلي دښمن دروغجن تبلیغات دي چې کوي یې او هغوی په دې ډول هڅه کوي پر خپلې شرمېدلې ماتې پرده واچوي، او د اسلامي امارت په هکله د وولس ذهنونه مخدوش کړي، خو الحمد لله اسلامي امارت په هر ډګر کې ثابته کړې چې کله یې هم د اسلام او مسلمانانو له ارزښتونو او اړتیاوو سره سرسري برخورد نه دی کړی، او نه یې کوي، بلکې په خپل ټول وس او توان سره به د تعلیمي مراکزو او علمي شخصیتونو ساتنه کوي.

بلکه دښمن بالعکس داسې جنایات د ښوونځیو په برخه کې ترسره کړي دي چې مونږ یې د بیلګې په څېر د یو څو مهمو پېښو او تخریبونو انځوریځ راپور درته وړاندې کوو.

۱ــ د غازي اباد ولسوالۍ د فتحې څخه وروسته د کابل اجیرې ادارې الوتکو د یادې ولسوالۍ د معارف مدیریت بمبار کړ او په بشپړه توګه یې تخریب کړ چې په مطبوعاتو کې یې انځوریز راپورونه خپاره او د یادې ولسوالۍ ټول ولس ته په ډاګه شوی دی.

۲ــ د اګست د میاشتې په ۷ مه نېټه د لغمان ولایت د بادپښ ولسوالۍ له فتحې څخه وروسته د اجیرې ادارې الوتکو د یادې





ولسوالۍ د تعلیم او تربیې مدیریت باندې بمباري وکړه چې یاد مدیریت یې مکمل ړنګ کړی او له استفادې څخه یې ایستلی دی.

۳ـ د اګست په (۱) مه دکندهار ولایت د پنجوایي ولسوالۍ د تلکان په سیمه کې د شپې ۱۲ نیمي بجې او ورځې ۱ بجه د مزدور دښمن الوتکو ۳ ځله دیادې سیمې پر ښوونځي بمبار وکړ، د بمبار له امله دښوونځي ودانۍ تر ډېره زیانمنه شوې .

۴ـ د جون په ۱۳مه د فاریاب ولایت د دولت اباد ولسوالۍ مرکز کې حکومتي الوتکو یو مکتب بمبار کړی، په یاد شوي بمبار کې مکتب ویجاړ شوی او درې تنه ملکي وګړي پکې ژوبل شوي دي.

۵ـ د جون په ۲۱مه حکومتي عسکرو د میمنې ښار په ٦ ناحیه کې دهلکانو یو ښوونځي (مکتب پسرانه دولت کپتان) باندې د ډیسي توپ پیرونه ترسره کړي چې له امله یې همدا ښوونځی وران شوی دی .

٦ـ جون ۱۳ مه د فاریاب ولایت د دولت اباد ولسوالۍ مرکز کې د دښمن الوتکو یو مکتب بمبارکړ. په بمبارکې مکتب تخریب شوی او ۳ تنه ملکي خلک پکې زخمیان شوي .

۷ـ جون ۳۰ مه د فراه ولایت د بکوا ولسوالۍ اړوند د ودود دوکانو او شیرسرخ په سیمو کې مزدور دښمن دالو تکوپه مټ بمبار وکړ چې په پایله کې یې یو سرای اویو سیمه ایز مکتب په بشپړه توګه ویجاړشول .

۸ـ جون ۱۰ مه ماسپښین د کابل رژیم وحشیانو د میدان وردګ ولایت جغتو محاصره ولسوالۍ کې د اولسي ـ خلکو په کورونو وحشیانه بمبار کړی، د راپور له مخې دغه وحشیانه بمبار کې، د کلابندې کلي کې یې ښوونځي ته زیان اړولی دی.

۹ـ جون ۳۰ مه د کابل وحشي ـ رژیم لخوا د بلخ ولایت چمتال ولسوالۍ کې د توخي په نوم ښوونځي باندې بمبار وشو. د څرخکو لخوا یاد ښوونځی داسې مهال تر برید لاندې نیول شوی چې لسګونه شاګردان په درسونو بوخت ول، د دغه جنایت له کبله ماشومان وېریدلي، د ښوونځي شیشې ماتې شوې او ودانۍ ته یې زیان اوښتی دی.

۱۰ ـ جون ۳۰ مه وحشي عسکرو بازارونو کې د چوراوچپاول ترڅنګ فرارود ولسوالۍ د قاضي اباد سیمه کې په سیمه کې داسلامي امارت دواکمنۍ د مهال یودیني مدرسه (دارالعلوم قیومیه) چې دامریکي له یرغل وروسته دولسوالۍ په سطحه یوفعاله مکتب چې (دفراه رود منځنۍ ښوونځی) په نامه ؤ دحفاظت احاطه یې په بمونو ور الوزولي اوترناوخت مازدیګریي دبازار دولسوالۍ طرف ته ترشل زیات دوکانونه دلوډر په مټ ونړول .

۱۱ـ مارچ په ۲۰ مه د عام المنفعه ځایونو د تخریب په لړ کې د شپې د ننګرهار ولایت خوګیاڼو ولسوالۍ اړوند د سوروډاګ په سیمه کې د صفردو قطعې په نوم کرایي قاتلینو۲۴ ساعته چاپه ووهله، د دغه جنایت په ترڅ کې یادو وحشیانو ۱ ښوونځي نړولی، د ښوونځي اطاقونه او د کتابونو خونې یې په بشپړه توګه خرابې کړې .

۱۲ـ مارچ په ۱۹ مه مزدور دښمن د غزني ولایت، شلګر ولسوالۍ اړوند، یرګتو په سیمه کې د ملا نوح بابا لیسه باندې دهاوان اوایسفیجنین توپونو مرمۍ وویشتلې، چې په ترڅ کې یې د یو تن استاد په ګډون٤ تنه شاګردان شهیدان او ۱۱نور ژوبل شول.

۱۳ـ د کابل ولایت ده سبز ولسوالۍ کې دا څوکاله د جګدلي او فرمانبیک کلو کې غلامه اداره اوسیده چې مکتبونه یې خپلې پوستې کرځولي دي د مکتب دروا زی اوکړکی یې ماتې کړې وې الحَمْدُ لله اوس مجاهدینو په پوره معنی سره فتحه کړ د جنګوله وجې خَلکو کډې بارکړې وې چې او وس ورته هدایت وشوچې خپل کورونه راولي اوخپل بچیان مکتبوته وهځوي او معلمانو ته هدایت وشول چې بیادخپلو وظائفو کې پابنده پاتې شي او ملازمان باید د خپلو مکتبو د هرشي پوره ساتنه وکړي یادو خلکوته ډاډ ورکړل .

۱۴ـ په ۲۰۲۰ میلادي کال کې د لوګر ولایت اړوند د څرخ ولسوالۍ د پسپجک په متوسطه ښوونځي باندې د دښمن د الوتکو په توسط بمبار وشو او یاد ښوونځی په بشپړه توګه تخریب کړ.

۱۵ـ په ۲۰۲۰ میلادي کال کې د لوګر ولایت په څرخ ولسوالۍ کې د مولانا محمد یعقوب چرخي په لېسه باندې د کابل اداري الوتکو بمبار وکړ چې په نتیجه یې یاد ښوونځی مکمل تخریب شو.



۱٦ــ په ۲۰۲۱/۴/۲۱ د بلخ ولایت چهاربولک ولسوالۍ کې دابوشکوربلخي په نوم ښوونځی په نوم بانډې بمبار وشو د یاد ښوونځی داسې مهال تربریدلاندې نیول شوی چې دښوونځی دمدیر او سرمعلم او د معلمینو تر منځ دو رځی په ۱۱:۳۰ بجو یوه مشورتي غونډه روانه وه

مالي زیان یې ډیر زیات ورسولی د ښوونځي چت او دیوالونه تر ډیره حده نړیدلي او څلور تنه معلمین د ښوونځی د شیشو د ماتیدو له امله زخمیان شول.

۱۷ــ په ۲۰۲۱/۵/۱ د بلخ ولایت چهاربولک ولسوالۍ کې د څرخکو لخوا یاد ښوونځی داسې مهال تربرید لاندې راغی چې یاد ښوونځی تازه دزده کوونکو پر مخ پرانستل شوی وو او اعماري چارې یې نوي تکمیل شوې وې.

۱۸ــ په ۲۰۲۱/٦/۲۷ د بلخ و چمتال ولسوالۍ کې د څرخکو لخوا د توخي په نوم ښوونځي داسې مهال تربرید لاندې راغی چې لسګونه شاګردان په زده کړو مصروف وو . د ښوونځي شیشې ټولې ماتې شوې او د ښوونځي زده کوونکي له سختې ویرې سره مخامخ شول او همداسې نو کابل، پروان، کاپیسا بغلان، کندز، تخار او نورو کې یې بېلګې شته .البته تر ټولو مهمه خبره دا ده چې ښوونځي پوسې او سنګرونه جوړ کړي دي د دې بېلګې په ټولو ولایتونو کې درکولای شو.

**پوښتنه: کومه ولسوالۍ چې مجاهدین ونیسي- د تعلیم او تربیې کمېسیون هلته د معارف د بیا احیا او د مکتبونو او مدارسو د تعلیمي بهیر د روان ساتلو لپاره کوم کاري طرز العمل لري او مقدماتي هڅې یې څه دي؟**

ځواب: هو په دې برخه کې د تعلیم، تربیې او عالي تحصیلاتو د کمېسیون په سطحه یو جامع او بشپړ طرز العمل چې په هغې کې د دیني مدرسو، دارالحفاظونو، کلیوالي مدرسو، عصري ښوونځیو او عالي تحصیلاتو د کاري استقامتونو په اړه پکې واضح لارښوونې شوي، ترتیب شوی او مشرتابه ته وړاندې شوی چې له مخې یې ورځنۍ چارې د تعلیمي مسئولینو له لوري ترسره کیږي.

نو په نویو فتحه شویو ولسوالیو کې د اسلامي امارت د تعلیم ، تربیې او عالي تحصیلاتو کمېسیون هڅه کوي چې په لومړي قدم کې د خپل کمېسیون له لوري تعلیمي مسئولین (مدیران) ورته وټاکي، او بیا د هغوی په مرسته تعلیمي چارې هماهنګه او پر مخ بوزي، په دوهم قدم کې د تعلیمي مراکزو مدارسو، مکاتبو او لیسو استادانو او نورو کارکوونکو ته د امنیت فضاء برابره کړي تر څو هغوی په ډاډه زړه خپل تعلیمي بهیر پر مخ بوزي.

په دریم قدم کې په کومو سیمو کې چې تعلیمي مرکزونه نشته هغلته موږ د کلیوالي مدارسو پروګرام لرو چې څلور صنفونه (اعدادیه، لومړی، دوهم، او دریم صنف) لري، چې د استادانو تنخواګانې، کتابونه، کتابچې او قلمونه یې د اسلامي امارت د تعلیمي کمېسیون له لوري ورکول کیږي.

په دې صنفونو کې د دیني او عصري دواړه مضامین شته چې ترې فارغ شوي شاګردان د مکتب څلورم او د مدرسې ابتدائیې درجې ته تللی شي.

او همداراز نورستان، کنړ او غازي اباد کې په جوماتونو کې د ماشومانو لپاره د ابتدائیې دیني زده کړو دائرو پروګرام هم په پام کې لرو چې په جومات کې د یوه استاد تنخوا په پام کې نیول شوې تر څو د کلي ماشومانو ته دیني زده کړې ورکړي. خصوصاً نورستان او کنړ کې یوه یوه فوق العاده دیني مذهبي مدرسه د مشرتابه محترم مقام له لوري زمونږ په غوښتنه منظورې شوې دي او اوس د فعالیدو په حال کې دي، او او همدارنګه په ننګرهار ولایت کې د خوارجو نه د لسو مفتوحه ولسوالیو کې (۷۵) بابه فوق العاده مدرسې د مشرتابه لخوا منظورې او مونږ د تعلیم او تربیې کمېسیون په زیار فعالې شوې دي او دغه راز په ټولو ولایتونو کې دارالایتامونه هم فعال شویدي، چې په هر ولایت کې یو یو البته په ځینو ولایاتو کې لکه کنړ کې «۳»، نورستان، پکتیا او کندز کې دوه دوه بابه .

او د تعلیمي بهیر په عصري برخه کې د یو نیسیف مؤسسې څخه تعلیمي کمېسیون په زیار او هڅو ۴ څلور زره CBS ښوونځي د ۱۳ ولایتونو مفتوحه سیمو لپاره منظور او په ځیني ولایتونو کې یې عملاً په کار پیل کړی دی چې په زرګونو ماشومان پکې عصري زده کړې کوي.

**پوښتنه : محترم مولوي صاحب مفتوحه سیمو او ولسوالیو کې خو به تردې دمه د تعلیم او تربیې کمېسیون له لوري کوم داسې محدودیتونه نه وي وضع شوي چې د خلکو د اندېښنې**

**وړ ګرځېدلي وي، په مشخص ډول د اناثو د تعلیم او تربیې په برخه کې؟**

ځواب: ټول ملت ته اطمنان ورکوو چې په مفتوحه سیمو کې پر هیڅ تعلیمي اداره کوم بندیزونه یا محدودیتونه نه دي لګول شوي.

هو په اوسني وخت کې د کرونا د وېروس له امله چې په ټوله نړۍ کې کوم محدودیتونه دي اسلامي امارت هم د صحت له کمېسیون سره په تفاهم د کرونا د مخنیوي په موخه د هغه محدودیتونو سپارښتنه کړې چې په ټوله نړۍ کې کیږي. البته اوس مهال ټولې تعلیمي ادارې عملاً پرانېستل شوي دي او د امتحاناتو لړۍ د اسلامي امارت تر نظارت لاندې په شفاف او چټکې سره روانه دی او همداراز که کومه مدرسه، ښوونځی یا لېسه د جګړې لومړۍ کرښې ته ډېره نږدې وي نو د ولس د ماشومانو او تعلیمي پرسونلو د خوندیتوب په موخه په موقت ډول هغه اداره تړل شوې تر څو مو تنکیو ماشومانو یا استادانو ته زیان ونه رسیږي.

درېیم د اناثو د تعلیم په هکله هم کومه ستونزه نه ده را مخې ته شوې، د تعلیم، تربیې او عالي تحصیلاتو ټولې تعلیمي ادارې چې په هغو کې د میرمنو ابتدائي، متوسطې او لېسې او نورې په خپل عادي حالت پرېښودل شوي دي څه تغیر مو پکې ندی راوستلی، خو چې په اسلامي چوکاټ کې وي، په کومو تعلیمي ادارو کې چې مخلوط تعلیم کېدو هلته یې د بېل، بېل تعلیمي ماحول سپارښتنه کړې ده، او مېرمنو ته یې په حجاب او پرده کې د راتللو وېلي دي، چې دا نه یواځې د اسلامي امارت، غوښتنه ده، بلکې شرعي امر دی او زموږ مسلمان ملت یې خپله غواړي، او چاچې پخوا به یې د ډیموکراسي پلوي کوله اوس هغوی له غربي ډیموکراسۍ داسې ستړي شوي، چې په سوالونو اوزاریو له دې کفري جال څخه د وتلو لارې لټوي.

لنډه دا چې پر تعلیمي بهیر هیڅ غیر شرعي او غیر ضروري محدودیتونه نشته، او که بیا وي هغه به د اسلام په چوکاټ کې د ملت په خیر اصلاحي تغیرونه وي چې ان شاء الله تعلیمي بهیر به نور هم ګړندی کړي.

**پوښتنه : ایا د هېواد په کچه مفتوحه ولسوالیو څخه ستاسي کمېسیون د یوه څارونکي پلاوي په شکل کې کتنه شوې ؟ که شوي وي کومې عمده ستونزې ستاسي مخته راغلي؛ ترڅو هغه حل او له منځه یوسئ ؟**

ځواب: په هیواد کې له شویو فتوحاتو او پرمختګونو سره سم د اسلامي امارت تعلیمي کمېسیون هم د نورو کمېسیونونو په څېر د هیواد ټولو سیمو ته حلقوي مسئولین، د تفتیش مسئولین او ورسره د ختیځې او لویدیځې حوزې له پاره د مرکزي کمېسیون په سطحه هیئتونه لیږلي او لېږي یې چې په ورځني ډول مرکزي کمېسیون ته راپور وړاندې کړي او په تعلیمي بخش کې تصمیم ورته ونیول شي.

بلکې دیته ورته کړنې د غلامې ادارې له لوري تر سره شوي دي چې د بیلګې په ډول د پکتیا ولایت په شهر نو او ډنډ پټان او داسې نورو مفتوحه ولسوالیو کې د مکاتبو معاشات د اسلامي امارت د بدنامې لپاره بند کړي دي تر څو عام ولس له اسلامي امارت څخه خوابدی کړي.

**پوښتنه ـ ښاغلی حقاني صاحب کولای شئ د وروستیو فتوحاتو له امله د امارت د مقام کوم داسې حکم او عمده لارښوونې د لوستوالو مخ ته کیږدي چې افغان ولس د تنکیو بچیانو د ښوونې او روزنې په باب د ځانګړې پاملرنې او توجه جالب ټکي پکې راغلي وي؟**

ځواب: کله چې په هېواد کې د فتوحاتو لړۍ پیل شوه، له هغې ورځې د اسلامي امارت مقام د نورو کمېسیونونو په څېر تعلیمي کمېسیون ته هم امر کړی چې سیمې ته خپل هیئتونه او مفتشین ولیږي، تعلیمي ادارې فعالې کړي، ستونزې او مشکلات وارزوي. دې چارې ته د تعلیم وتربیې کمېسیون په مرکزي سطحه تصمیم ونیول شو. د کمېسیون په کچه مو یوه رسمي اعلامیه خپره کړه او ټولو تعلیمي مسئولینو ته مو یو متحد المال مکتوب واستاوه چې د نویو فتحه شویو سیمو تعلیمي ادارو ته ځانګړې توجه وکړي څو د ښوونې او روزنې کارونه یې ټکنی نشي۔او نه دې کوم بندیز پرې لګول کیږي. په مفتوحه سیمو کې د تعلیمي مراکزو او تعلیمي پرسونل امنیت خوندي کول هم د اسلامي امارت د مقام لویه غوښتنه ده ـموږ ټول ولس ته ډاډ ورکوو چې اسلامي امارت به د تعلیم وتربیې بهیر ته د ترقي ورکولو ترڅنګ د دې ادارو او پرسونل دفاع د وینې تر وروستي ځاځکي کوي . پای.

# عامه شتمنۍ ولې او څوک ورانوي؟

لیکنه: أبو إحسان عامر

شاوخوا شل کلونه وړاندې له کله نه چې زموږ پر ولي خاوره د إشغال ناولې څپه راغلې او دلته إشغالگرو خپل ناولي قدم ایښې، له هغه تر نن پورې زموږ إسلامیت، افغانیت، عفت، خپلواکي، شتمني، ارضي تمامیت او د ژوند هره خوښي او ترقي له لوی گواښ سره مخ دي؛ ځکه خو اوس هره ورځ وینو چې دا هر څه مو د غرب په فکري او نظامي بې رحمه غشو لگیږي او زخمي کیږي.

که څه هم هغه وخت به اشغالگرو او د هغوی تالی څټو دا نغاره ډنگوله چې: زموږ هدف بیارغونه، ولسواکي او په هره برخه کې د یوه پر خپلو پښو ودان افغانستان درول دي او بس.

دوی په ظاهره خپله بدي او جگړه یوازې او یوازې له طالب سره محدوده گڼله او یوازې طالب وو چې دوی ورته په خپل ټاټوبي کې د ژوند او ازادۍ حق نه ورکاوه، سهار او ماښام به یې د خپلو تش په نوم رسنیو په مټ ورته دوه افشونه (زندان او قبرستان) إعلانول. خو خبره دغسې نه وه غرب زهر د شاتو په نوم تېرول.

دوی په پوره وس او وسائلو هڅه کوله او کوي یې تر څو طالب نړۍ او ملت ته د إنسانیت او ترقۍ په لوی دښمن او غرب او غلامان یې په بشر پالو او بیا رغوونکو ور وپېژني، خو دا چې تدبیر د تقدیر مخه نشي ډب کولای پر شیطان او ملگري یې تاریخ گواه دی چې تل په خپل کمزوري مکر او خپلو ماشه دامونو کې ښکېل شوي.

اَللّٰه (ﷻ) یې په اړه وایي: إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا. (سُورَةُ النِّسَاء: ۷٦)

د شیطان دسیسې په حقیقت کې ډیرې کمزورې دي. نن لله الحمد، وینو چې معاصر شیطان (غرب او ملگري) یې کټ مټ د خپلو اولنیو له برخلیک او تېښتې سره مخ دي، خپلې د لاس ډېرې یې پر خپلو تندیو ورلوېږي او ورځ تر بلې افغانستان او نړۍ کې منفور گرځي.

اوس د دوی کاذبه داعیه ښه بربنډه شوه، ولس او نړۍ ټولو د سر په ستر گو ولیدل چې د إشغالگرو او د هغوی د غلامانو (کابل إدارې) دښمني یوازې له طالب او مجاهد سره نه ده بلکې دوی د افغان مؤمن ملت د سوکالي او ترقي لوی دښمنان دي، دوی دي چې د رسنیو د مایک او سکرین له لارې پر افغاني کلتور او عفت مسلسل بریدونه کوي او دوی دي چې هره شپه او ورځ د افغاني ملکي ولس ځواني، شتمنۍ ودانۍ د بارودو په اور او بمبار سوځوي.

ښه بېلگې یې تېره ورځ (شنبه، ۹زمری ۱۴۰۰: ۳۱/۷/۲۰۲۱

په هلمند او بدخشان ولایتونو کې د دښمن د الوتکو هغه وحشت او بمبار دی چې په مټ یې لښکرگاه کې د اریانا افغان تخصصي روغتون لوټې لوټې او د بدخشان د یاوان ولسوالي مرکز له خاورو سره خاورې شو.

دا څه اوله او نا څاپه یا خطایي پېښه نه ده بلکې دښمن تردې دمه د گڼو هغو ولسوالیو مراکز او غټې قرارگاوې بمبار او تخریب کړې دي کومې چې په دې وروستیو کې مجاهدینو ترې نیولې دي.

اوس خو به ښه جوته شوې وي چې د کابل إدارې ته چوکۍ نیونه او نیویارک ساتنه تر ملت او شتمنۍ ساتنې خو څه آن تر ځان ساتنې هم اولویت لري.



د يادوني وړ ده چې په تېر څه د پاسه يوه مياشت کې له دښمن نه د نيول شويو ولسواليو شمېر شاوخوا ۲۰۰ دوه سوه ته رسېږي چې دا سترې فتحې خپله پر دې گواهي وايي چې ملت له طالب سره دی او إمارت د ملت له زړه نه خړوبيږي. طالب د ترحم يو بل نوم دی طالب هغسې نه دی کوم چې ديموکراسي پلوو په نړۍ ته ور پېژندلو.

ملت د دې قاتل جمهوريت او پليتې ديموکراسۍ درد هره شېبه څکلي هره گړی د دوی په لاس له مرگ او درد سره مخ دی، له ملت نه د طالب خواخوږي او ترحم هم پټ نه دی، ټول پوهيږي چې طالب ابادی ورانونه، وينه تويونه او مرگ نه غواړي، زرگونه د کابل إدارې عسکر يې په گلونو استقبال کړل، ملت او نړۍ وينې چې کوم ښارونه او کومې لويې لارې چې پرې به د چا سر او مال محفوظ نه وو هغه اوس فتحه شوي ۲۴ ساعته د خلکو پر مخ نه يوازې دا چې پرانيستي دي بلکې له هر رنگه ډاډ او امن نه برخمن دي.

هغه رسنۍ، قلموال او هغه ژبور چې طالب او مجاهد يې د پول او پولچک دښمن نوماوه، د إمارت د مجاهدينو پاکه جهادي مبارزه يې بل ته منسوبوله اوس يې دوی او قضاوت، دوی دي اوس إمارت او کابل إداره د انصاف په تله وتلي.

دوی چې د يوه قاتل عسکر په مرگ څوړ جوړوي دوی چې کولای شي په هر څه کې خاشه ماته کړي، وړه خاشه په لرگي بدلولای شي او يوه وحشي کماندويي نه کميدي جوړ او هغه بري کړي، ولې د کابل إدارې د وحشي بمبارد اسمان څکې لوخړې ورته د بيا رغونې گرد بربښي ولې پر دومره لويه ملت وژنه او افغان وژنه غلي دي.

دغه ړانده د بيان د ازادۍ مدعيان ولې کندهار کې د خبريالانو د څلور کسيز حقيقت موندونکي ټيم پر نيونه پټه خوله دي؟

خبره ښکاره ده که يې دوی مني او که پرې خان اچوي لمر په دوه و گوتو نه پټيږي، له ورکې سره مخ د کابل إداره کوښښ کوي ترڅو د شهوة البطن او شهوة الفرج سره سره د نيويارک ساتنه او د افغانانو خوښ ساتل ټول په يوه وار تر سره کړي چې دا هيڅ شونې نه ده.

څکه متل دی: که څوک په يو وخت دوه سويانو پسې منډې وهي يو به هم په لاس ور نه شي.

چې خبره داسې ده نو ملت او نړۍ بايد د دې مشت نمونه خروار يادونو نه تر کاسې لاندې د کاسې د غرب او کابل إدارې د ازادی، غلامی، بيارغونې، ولسواکي، جمهوريت، ترقی، ابادی او بر عکس د طالب د إسلاميت او افغانيت ښه اندازه ولگوي.

يک شنبه:

۲۲/ذوالحجة/۱۴۴۲ ه ق

(شنبه، ۹زمری ۱۴۰۰: ۳۱/۷/۲۰۲۱



# د کندهار والي محترم حاجي وفا صاحب مجاهدینو ته په خطاب کې:

## ارزو مو دا ده چې د کندهار ښار به له کوم مقاومت او مزاحمت پرته د مجاهدینو لاسته ورځي.

تر هغه وروسته چې د کندهار په یو شمیر مهمو ولسوالیو سربیره دهیواد په کچه د سپین بولدک ولسوالۍ او هم سرحدي ښارګوټی ویش د اسلامي امارت تربشپړې واکمنۍ لاندې راغی او په پوځي، سیاسي او اقتصادي میدانونو کې یې مزدور رژیم ته درنه صدمه واړوله د کندهار والي محترم حاجي وفا د کندهار مجاهدینو ته په ځانګړي پیغام کې وویل:

مجاهدو ورونو تر هر څه د مخه د وروستیو ټولو فتوحاتو مبارکي درته وایم، الله پاک دې د مجاهدینو ټولې ستوماني، غزاوي او د شهداو پاکې قربانۍ په خپل دربار کې قبولي وګرځوي ربښتیا هم د همدغو قربانیو او پاکو نیتونو برکت و او د الله تعالی د خاص لطف او نصرت نتیجه وه چې نړیوال طاغوت امریکا او ناټو یې په افغانستان کې په ګونډو او وتلو ته مجبوره کړله او هم یې له داخلي ګوډاګیانو څخه وار او پار خطا کړ.

ورورنو! مزدور دښمن روحیه او مورال بایللی، د نور هیواد په څیر کندهار کې هم زیاتره ولسوالی د هغوی له سلطې څخه وتلي او یا وتونکي دي کومې سیمې او ولسوالۍ چې ندي تسلیم شوي له مجاهدینو سره په رابطه کې دي کوشش کوو چې په خپله خوښه د امارت غیرې ته پناه راوړي، په کندهار کې د بولدک ولسوالۍ او له ګاونډي هیواد سره د ویش سرحدي بندر د دښمن لپاره حیاتي او ستراتیژیک اهمیت لره چې الله پاک هغه فتحه کړي او د مزدور رژیم پوځي او اقتصادي شیریانونه یې ورپریکړل.

د کندهار ولس په جریان کې دی چې له کندهار څخه د سپین بولدک په لاره تر سرحد پورې د افغانانو ابرو عزت، مال، ناموس او یو سه هم نه و خوندي تر ټولو وحشي او بې رحمه خلک همدلته د چارواکو او د لارې د ساتونکو په شکل کې موجود ول، نو چې الله تعالی مونږ او تاسې ته دومره مهم فتوحات پرته له کوم زیان او تلفاتو ولورول او مشهورظالمان یې راونړول؛ پکار ده چې مونږ او تاسې د الله تعالی ډیر حمدونه او شکرونه ووایو، د تکبر، ځان ښودنې، زشت برخورد او انتقام جویي څخه په کلکه پرهیز او ډډه وکړو ځکه یو وخت مونږ د شریعت په حکم مکلف و چې دښمن سره به جګړه کوو او وژنو به یې اوس د حضرت شیخ صاحب یعنې امیرالمؤمنین په هدایت مخالفینو ته د عفوې او بخشش شفقت شوی نو اوس زمونږ وجیبه او فریضه دا ده چې د مخالفینو د مرګ او ژوبلې په ځای هغوی خپل صف ته دعوت کړو او د شفقت لاس وربانديې راکش کړو.

د کندهار والي صاحب د خبرو په جریان کې وویل: کومې سیمې چې د مجاهدینو لاسته ورځي تر ټولو مهم

کار او مکلفیت یې دا دی چې د عامو خلکو د شتمنیو بازارونو، د ارایيو او بیت المال کلک محافظت او ساتنه وکړو شپه ورځ ورته متوجه ووسو ترڅو فرصت طلبه خلکو ته د ناوړه کړنو زمینه مساعده نسي .

دغه راز دولتي تاسیسات حکومتي دوائر د ملت سرمایه ده د هغو حفاظت او ساتلو ته به کلک متوجه ووسو خلکو ته به په هره برخه کې د اسانتیاو برابرولو کوشش کوو خصوصا د ویش په سرحدي دروازه کې البته مونږ یو جامع پلان ترتیب کړی چې دروازه باندې تلونکو او راتلونکو هیوادوالو ته تر خپلې وسې مناسبې اسانتیاوې او سهولتونه برابرکړو ځکه په دغه دروازه باندې افغانانو د مفسدي اداري له لوري سخت تکلیفونو لیدلي دي.

محترم حاجي وفا زیاته کړه اسلامي امارت د کندهار ښار د نیولو لپاره هم د الله په فضل لازم چمتوالی لري، خو تر هغو وړاندې د امارت زیات ترکیز او ارزو په دې کې ده چې کندهار ښار کې جګړه ونشي وینه تویه نه شي ښار وران نه شي او په سولییز ډول د کندهار تاریخي ښار د امن او اطمینان په وزرو کې ونغاړل سي او زمونږ ډیر امید او هیله دا ده چې کندهار ښار به له جګړې او مزاحمت پرته د امارت لاسته ورځي

ان شاء الله تعالی.



## غازیانو او مظلوم ولسه!
# فتحي موبختورې شه

د ـ جلال هوتک

دهیواد دنورو فتوحاتو ترڅنګ دشمالي ولایتونو فتحې دې ټول افغانستان په ځانګړي ډول د اسلام دې عظیم غازي ته مبارک وي .

ده د شمالي ولایتونو په تسخیرولو سره د شمال او جنوب د مجاهدو ولسونو تر منځ ولاړ هغه دیوال له منځه یوړ چې د دین او هیواد ازلي دښمنانو زموږ د بیلتون په پار درولی و .

دغه دیوال چې د یوه مسلمان ملت غوښې او هډونه یې سره بیل کړي وو، نور د فصیح الدین او ورسره لښکر د اوسپنیزو مټو زور ته د تم کېدلو نه وو او په چپه کېدلو سره یې د دریو اشغالګرو امپراطوریو هیلې له خاورو سره خاورې شوې .

نور به دا ولس د شمال او جنوب او د پښتون او فارسي ژبې په پردیو مقیاسونو نه ویشل کېږي؛ بلکې یوازې تقوا او د الله ویره به وي، چې د مؤمنو افغانانو تر منځ به رتبې ټاکي .

نور به په شمال کې د بدخشان، کندز او بغلان افغانان تر هغه بیرغ لاندې د ارام ساه اخلي، چې په جنوب کې د کندهار، هلمند او روزګان د پښتنو په سر رپي .

نور به لنډه غر بدخشان خپل تم ځای ونه بولي، د تخار غرونه به فحاشانو ته ځای ورنکړي، د غور په دښتو او ګارو کې به د صلیبي جګړې د عسکرو پښې تم نشي او د کندز پر معطره ځمکه به د پاټکیانو راج ونه چلیږي .

نور موږ یو برم ته ور ستنېږو. هغه برم چې چې یو وخت د اسیا زړه درلود .

دا د عمر او منصور خاوره یوه زرین دوران ته ور ستنیږي، هغه دوران چېرې چې ملت یوازې د افغان په نامه غږ کاوه. ان شاءالله

سعد کټوازی

# دروغجن او بې انگېزې شعار

# او سرچپه رښتوني حقیقتونه!!



ملتونه باید همېشه وېښ وي، که غفلت کوي او ویده کېږي، نو هم د زمري په څېر په نیمه او یوه سترگه یې وکړي، داسې نه چې د ځینې ملتونو په څېر په غبرگو سترگو او ټولو حواسو ویده او همداسې پر لسیزو خوب وړي پاتې شي چې بیا د عقیدې، فکر، فرهنگ، عنعناتو، معنوي دفاعي ځواك (غیرت، مېړانې، ایثار، جهاد پالنې، همت، پر ځان بسایني)، ملي او دیني ارزښتونو- شتمنیو- ذخائرو او... له مخې پر یو او بل نوم ولوټل شي او له ویښتیا وروسته هېښ او د مچ په شان لاسونه مروړي.

زموږ په گران هېواد افغانستان کې همدا لوبه ترسره شوه او لا روانه ده، په پردي لوېدیځ نوم (معاصر تروریزم او ترهگري) چې حقیقت یې رښتونی اسلام دی د امریکا په مشرۍ د ۴۸ نه تر ۵۲ هېوادونو تر ټولو ستر اشغال ور پسې دلته راغی، زیاترو یې لا له وړاندې دلته خپل روزل شوي پردیپال گوډاگیان او آن ملېشې لرلې چې پر غوښه او هډ، وینه او خوله یې ورته چوپړ وواهه، خو دا دی چې یاد ستر اشغال مات او گوډاگیان/ملېشې یې د وارخطایۍ او بې اسرېتوب په وروستي حد کې قرار لري.

دا چې په پورتني لویدیځ نوم (معاصر تروریزم او ترهگري) د افغانانو سر نه رسېده او نه هم پر افغانانو او د یو ملي خوځښت په توگه د هغوی له منځه راپورته شویو طالبانو د تروریست او ترهگر نوم رښتیا کېده، بل خوا د گوډاگیانو پر ټنډو د غلامۍ تور داغ رسوا کېده چې دوی خو د پردیو لوېدیځوالو لپاره او د هغو پر وړاندې دربدلي د خپل ولس ملي خوځښت سره جنگېږي او خپل وگړي وژني، له دریم لوري لکه چې د دوستي په جامه کې دښمني وي، سرچپه د دښمنۍ په نوم دوستي هم ترې کمه نه وي او له څلورمې خوا یې بیا د خپلو ولسي وگړو د وژلو لپاره کومه بله موثره وسیله په لاس کې نه درلوده.

نو ځکه د اشغالگرو د تروریزم او ترهگرۍ له لوېدیځي اصطلاح/نوم سره گوډاگیانو د پنجابیتوب اصطلاح/نوم ور زیات کړ، هغه چې افغان ولس ته لېږ مأنوس او د ډېورنډ کرښې محوري معضلې او ځینې نورو د استخباراتي کړیو خود ساخته مسئلو پر سر د ولس د غم او خواشینۍ له امله یې د هغه زړه ته لاره کولای شوه ترڅو د گډ غلیم له لوري د ولس وژنې پلمې یو له بلې یو څه مغایرت ولري، د ښکاره شعار په توگه د اشغالگرو پلمه یو څه خپلو ولسونو ته د منلو وړ وي او نور د دروغو او غولونې له لارې پرې ومنلای شي او د گوډاگیانو یې بیا خپله پلمه وي چې له لېږ حساسیتونو را پارولو او گڼو غولونکو توجیهاتو سره زموږ مظلوم ولس ته د منلو وړ او لا زیات یې د زور او له نورو لارو پرې ومني او بې خاره دغه وژنې ترسره کړي.

اشغالگر به یې د تروریست او ترهگر په نوم وژني او د هغوی گوډاگیانو ته چې خپل ولس د تروریست او ترهگر په سترگه کتل ناچله پلمه ده، دوی به یې په داسې حال کې د پنجابي پر نوم وژني چې عملاً په خپل جوړښت کې پنجابیان لري، ښکاره او پټې همکارۍ او معاملې ورسره لري، کړنې او دریځونه یې توجیه کوي، د پنجاب مخالفو وسلوالو ته په افغان خاوره کې له ځای ورکولو

وروسته يې هغوی ورته له منځه يووړل او... هر ډول چوپړ ورته وهې چې دا دی له برکته يې په دې وروستيو کې د طالبانو له بريدونو بې خاره پناه ور وړي.

د خپل ولس ملي خوځښت/طالبانو ته د پنجابي نوم ورکولو او بيا د طالب په تور له ولسي وګړو د پنجابي پر نوم غچ اخيستلو الهام ښايي دوی له دې واخيست چې د اشغال له راتلو سره دوی د اشغالګرو په ورکړو دروغي ژمنو د مستۍ او نشې تر حده خوشاله و، د طالبانو د بشپړې محوې فکر پکې عام شوی و، د اشغال پر وړاندې د مقاومت آن فکر لا هم نه کېده، د جهاد فکر خو چې لا له وړاندې کمونستانو خپله ټوله هڅه کړې وه له منځه يې يوسي، اوس يې د پخواني جهاد بې ثمره کولو وروسته د طالبانو سقوط د خپل دغه خوب رښتونی تعبير ګاڼه او...

له بل لوري په کور دننه او هم له روسي ښکېلاك څخه د ګاونډي هېواد ګډې پولې ته مهاجر شوي د پخواني جهاد رښتوني مجاهدين، د شهيدانو کورنۍ او خپلوان، حقاني عالمان، رښتوني او په ټوله کې هغه افغانان چې د کورنيو جګړو له لوث څخه خوندي يا هم ليري د لوی افغانستان اړوند ګډه پوله کې پاتې شول او د صليبي اشغال تر شېبو را ستانه شوي نه و، همدا رنګه ځينې هغه افغانان چې له دې اشغال څخه يې بيا ځل هجرت او مسافرۍ ته اوږه ورکړه، د پولې هغې غاړې ته لاړل او بيا يې لږ شمېرو بېرته پر امريکايي اشغال مخ را واړاوه او د هغه پر وړاندې يې يو ځل بيا وسلوال مقاومت پيل کړ.

په طبيعي ډول هغوی د مقاومت له دګره وخت ناوخت د هجرت ديار کې کورونو ته تلل او بېرته راتلل او په مقاومت کې زخمي کېدو، وژل کېدو او له اسارت وروسته را خوشې کېدو سره سم کورونو ته وړل کېدل چې زياتره به د لارې په اوږدو او په مهاجرت کې اسير کېدل او وژل کېدل، دښمن يواځې همدا خپل دليل ګرځاوه تر څو پرې مجاهد طالبان پنجابي ونوموي او ورسره ټول مجاهدين چې په کور دننه اوسي او مقاومت کوي او تر شا يې ولاړ ولس هم پنجاب ته منسوب کړي، خو په تېرو دوه لسيزو کې د داسې هيڅ فرد چې دوی ورته د پنجابيتوب نسبت کړی؛ نه يې رښتوني اسناد وړاندې کړای شو او نه يې هم لري، د دې سرچپه چيرې هم يې کوم پنجابی خوږ قدري نکړ، بلکې لا ښايي طالبانو د همدې ګوډاګي دښمن په ليکو کې وژلي او ژوبل کړي وي.

دغه د تش نوم تر کچې دښمن يې هم د دوی په سيکولرانه او احمقانه پاليسي کې کومه داسې ګناه نه وه کړې، نه په رښتيا او واقع کې دوی پر څه تورن کړی (بلکې لا موخې، ګټې او هڅې يې ګډې وې/دي) او نه هم دومره و/دی چې پر نوم يې خپل وګړي او د ولس بچيان د دومره سترې دښمنۍ او عام وژنې وړ وګرځي او آن د امريکا او ۵۲ هېوادونو اشغال د نړۍ له ها ليرې کونج څخه ورپسې- راځغلي، بلکې دغه نوم يې يواځې د غولونکي شعار او د ولس وژنې د سوځړې په توګه را منځته او بيا پسې لوړ کړی او پړسولی و.

پر دې شعارونو يې شل کاله يواځې خپل ولس پر ټولو حواسو ويده وساته، ورسره هممهاله يې د ولسي- وګړو قصابه او سلاخي وکړه، د هېواد ځمکنۍ بشپړتيا ته يې بلا زيان واړاوه، د تجزيې له جدي ګواښ سره يې مخ کړ، د ولس هرڅه يې تس نس او ملي ذخائر او شتمنۍ يې ترې چور کړې، ارزښتونه يې ترې ولوټل، او...

پر دې سربېره غليم همدې د تش شعار تر کچې دښمن سره پټ او ښکاره، مستقيم او نامستقيم ډېر مثبت ګامونه هم واخيستل، ډېورنډ فرضي کرښه چې افغان ولس يې له پنجاب سره د سرخوږۍ محور ګڼي او په هيڅ بيه ورته نه د منلو وه او نه هم ده، د هغې په شمول د ګډې پولې په اوږدو کې پر لسګونه کيلومتره افغان خاوره يې ورسره د ولس له پوښتلو، غوښتلو، خوښې او له اختيار ور کولو پرته په خورا محرميت او چالاکۍ سره پټه معامله وکړه چې بيا پر افغان خاوره د پنجاب د پرلپسې پوځي (توغنديزو بريدونو) او اشغالګرانه (خاورې لاندې کولو او پرې اغزن تار کشولو) تېريو او سياستونو د هغه پر وړاندې د افغان ولس حساسيت او خواشينۍ څو برابره نوره هم لوړه کړه، د ولس له دې حساسيت او خواشينۍ څخه په ناوړه استفاده غليم لا زيات د پنجاب دښمنۍ شعار ته زور ور کړ، وګړي يې پرې قتل عام کړل او کلونه د پنجاب د يادو تېريو راز (ياده معامله) پرې پټ وساتل شو.

همدارنګه د پنجاب مخالفو وسلوالو ته يې د يو امنيتي جوړ جاړي له مخې په افغان خاوره کې پناه ورکړه او وروسته يې په غدر ورته ووژل، په بېلابېلو دولتي سکتورونو کې يې ګڼو پنجابيانو ته ځای ور کړ او ورته تر يو ميليون لوړې تنخواګانې يې وټاکلې چې

په دې وروستيو کې د کندهار ګڼ دولتي منسوبين د پنجابي شناختي کارډونو له لارې وپېژندل شول، په امنيتي او استخباراتي برخو کې يې ترونونه ورسره وکړل، پر کونړ، ننګرهار او نورو سيمو يې لسګونه ځله سلګونه راکټي بريدونو پر وړاندې چوپ پاتې کېدو او د پنجابي پوځيانو د تېريو پر وړاندې د افغان سرتېرو او ولسي-وګړو حساسيت او غبرګ په زندې کولو سره يې د پنجاب دا ډول کړنو ته جواز ور کړ، پنجابي چارواکو سره يې د هېواد او ولس پر برخليك وخت پر وخت محرمې/پټې او ښکاره ليدنې کتنې ترسره کړې او هغو ته يې دلته له هرځل راتګ سره سم په لوړه کچه رسمي پروتوکول ورکړل او ډېر نور.

بالمقابل ياد دښمن!! هم ورسره د طالبانو پر وړاندې ودرېد، له کوره د باندې يې د اهدافو په تشخيص کې لاس ورکړ، طالب مشران يې ور په ګوته کړل تر څو ټارګټ کړل شي، ژوبل سرتېري يې ورته تداوي کړل، د طالبانو له وېرې لسګونه تښتېدلو سرتېرو ته يې پناه ورکړه، د افغان ځواکونو قوماندانانو ته يې خپل تابعيتونه ورکړل چې په دې وروستيو کې د کندهار د وژل شوي امنيه قوماندان جنرال رازق هغه پنجابي لوکل سرټيفيکټ چې تر شناختي کارډ زيات ارزښت يې درلود هم رسنيو کې لاس پر لاس شو او... دا ټول تر همدغه دروغجن او بې انګېزې شعار لاندې د هغه د سرچپه رښتونو حقيقتونو په توګه.

دېته نو په رښتيا په غوښه او هډو، وينه، مينه او خُوَله د اشغال چوپړ وايي چې پکې له خپل شريك سره يې خورا پېچلې خو صمېمانه دوستي پر دومره چالاکۍ پر مخ يووړه چې په ښکاره يې دوه لسيزې اوږده موده د هغه دښمني خپل شعار ګرځولې وه، بيا هم يې د ده پر ځای دا ټوله موده خپل ولس او د هغه بچيان سلاخي کړل او د اشغال د چوپړ له شريك سره خپله دوستي او د ښکاره بې انګېزې شعار راز يې پرې پټ وساته.

اوس نو چې د طالبانو په وروستيو پرمختګونو؛ په نورو ټکو: د طالبانو پر راتلو زموږ ولس را ويښېږي، دغه دروغجن شعار او سرچپه رښتوني حقيقتونه يې سره پېژني او د همدې ويښتيا او حقيقتونو د پېژندنې په تور يې غليم لازيات بې دربغه ټکوي، کړوي او وژني يې، ولس خورا هېښ او حيران دی، لاس مروړي او يواځينۍ اسره چې سترګې يې ور اوړي طالبان دي او بس.

د طالبانو وروستيو پرمختګونو او ژمنتيا ته پر کتو، هغوی به د ولس او د هغه د بچيانو (که بشپړ ۲۰کاله يې د دوی پر وړاندې د وسلې له ګرم ميل سره د اشغالګرو ملتيا کړې هم وي) اسره او د دې درد دوا شي، خو که هغوی د بيا لپاره دا ډول شعارونو ته بيدار واوسي، بيا څه چې همدا اوس اوس د پښتون ژغورنې پر نوم د لوفرانو او هرزه سرايانو نشنلستي ډلې پر زهرو لړلي شعارونه دي، د دغې ډلې شعارونه هم په ښکاره پر پنجاب دښمنۍ را څرخي، خو موخې يې هماغه دي چې په ګران هېواد افغانستان کې د اشغال او د هغه په چوپړ کې پرديپالو ګوډاګيانو وې او لله الحمد بشپړې يې وبايللې.

په هېواد کې د تېرو ښکيلاکونو د ماتې په درشل کې هم دا ډول د پاچاخان نشنلستي ډلې سر راپورته کړی وه چې اوس د دې نويو نشنلستانو ملتيا کوي، ننني د پښتون ژغورنې نشنلستي ډله په خورا مکر او چل د ولس هيلې زندۍ کوي، د ملا پر تير يې غوټ ماتوي، ځوان نسل يې د بربادۍ کندې ته ور ټېل وهي، د ماتې خوړلي غليم پر وړاندې يې لاس ورتړي، په فکري لحاظ الحاد (د اسلام له حقانيت او سپېڅلي اسلامي عقيدې له پېژندلو سره سره تري د تعصب او کينې له امله انکار) او په اخلاقي لحاظ يې فحاشي-بربنډتوب-د ځوان کول/نسل بې بندوباری او پرديو نا اسلامه فرهنګونو ته سوق کوي او بيايي، خو شعار يې بيا هم همدا پنجاب دښمني، هماغسي-بې انګېزې او لاندې تري ياد سرچپه رښتوني حقيتونه سرپوښ شوي چې ولس بايد ورته بيدار واوسي، پر وخت دغه سرپوښ ليرې او حقيتونه درك کړي.

رښتيا وايي چې د بلې/نوې پايلې په تمه ناکامه تجربه تکرارول لېونتوب دی، نو ولس دې دا ليونتوب نه کوي، د پنجاب دښمنۍ په شعارونو دې نور ځان نه غولوي او ښه دې غوږونه او سر هم خلاص کړي چې پنجاب دښمني تش او بيا يو تر ټولو بې انګېزې شعار دی، که هر وخت او هر ځای وکارول شي، ولس او ځوانان يې بايد له زړه ته اچولو او پر ژبه زمزمه کولو وړاندې لازمي تر هغه لاندې رښتوني حقيقتونه وپلټي، درك به کړي چې يواځې پښتون دښمني، زموږ د ځوان نسل دښمني او په عموم کې افغان دښمني ده او بس چې اوس يې هر افغان وګړی شل کلنې ترخې تجربې لري... پای.

د افغانستان اسلامي امارت د مذاکراتي ټیم او سیاسي دفتر غړي

# محترم مولوي محمد نبي عمري

## د خپل ځلمي ځوی د قبر په سر وویل:

**زه افتخار کوم چې زما ځوی د الله تعالی د دین په خاطر خپله معصومه وینه تویه کړه.**

شهید ملا عبدالحق عمري چې د اسلامي امارت د مذاکراتي ټیم او سیاسي دفتر غړي محترم مولوي محمد نبي عمري ځوی و د ۱۴۰۰ هـ س کال د زمري میاشت په ۴ نیټه د سي آی اې د خاصو ګوډاګیو عسکرو سره په مخامخ معرکه کې د خوست ولایت نادر شاه کوټ ولسوالۍ زیړی سیمه کې د ۲۱ کلونو په عمر د شهادت لوړې مرتبې ته ورسیده إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ

مولوي محمد نبي عمري چې د خپل دنګ، ملنګ او باتور ځوی د جنازې مراسمو ته له قطر څخه رارسیدلی و د قبر په سر یې څو مختصر۔ ډاډمن او له شجاعت ډک ټکي داسې وفرمایل: شهید ملا عبدالحق هم د افغان مجاهد ولس له هغو بااحساسه ځوانانو څخه و چې د الله تعالی د دین د لوړاوي او د اسلامي نظام د ټینګښت ارزو او هیله یې په ذهن او رګونو کې ځای درلوده، زما ځوی چا نه و مجبور کړی قطر هیواد یې د جهاد، غزا او شهادت په خاطر پرې ایښی و.

زه نن د شهید عبد الحق په ویاړمن شهادت افتخار کوم چې خپله پاکه او معصومه وینه یې د الله د رضا او د اسلامي نظام د حاکمیت لپاره نذرانه کړه، هیله کوم چې الله یې وینه او قرباني قبوله وګرځوي.

ښاغلي عمري صاحب د هیواد په روانو حالاتو هم په لنډو ټکو کې رڼا واچوله ویې ویل:

که څومره د افغانستان مسئله اوږده شوه خو اوس یې الحمدلله الله تعالی ثمره رابښکاره کوي د امریکا او ناټو وتل دا کومه عادي خبره او فتحه نده دا د همدې شهیدانو، زخمیانو د وینو، مجاهدینو، مهاجرینو د زحمتونو نتیجه ده.

تاسي په الله باور او یقین وکړئ که تاسو د هغو یرغلګرو چې دا شل کاله له مونږ سره جنګیدلي حالت ووینئ چې ملګرو سره د خبرو میز ته کیني د ځان د دفاع هیڅ دلایل نشي۔ جوړولای ځکه هره خبره یې ملګري د الله په فضل په معقول انداز ردوي او تر ټولو مهمه خبره دا ده چې نړیوال د اسلامي امارت په مستحکم دریځ پوه شوي چې له خپلو دیني او ملي

اقدارو د یوې لحظې لپاره هم نه وروسته کیږي نو ځکه لـه بې ځایه سرتنبگۍ څخه ځان ساتي.

دغه راز کله چې د کابل رژیم پلاوی د خبرو لپاره قطر تـه راځي، بیا بیا په مجالسو کې وایي چې مسلمانان دي افغانان دي اسلامي نظام غواړي هر څه منې خـو فقط چې دوی تـه د سر امن او په دې وطن کې د اوسېدو موقع ورکړي.

دا برياوې يواځې د الله نصرت او د همدې پـاکو قربانیو برکت دي، مولوي عمري په پای کې وویل: په شـهید عبـدالحق که زمـا کـوم حـق وي زمـا ورتـه مکمله عفوه ده تـر اوسـه مې الحمدلله دده نه کومه نافرماني نده لیدلې الله تعالی دې لـه ده څخه راضي شي.

طـــــالبه اورې؟

دا فکر و نه کړې، چې اسلامي نظـام کـې بـه دې څوک ننګه وکړي. ستا اسلامي نظام تـه دښـمن هغومره صدمه نه ده رسولې، څومره چې بې پـرې (!) مسلمان در رسولې!

عزم دې نور هم ټینګ کړه، د نظام پر مقاصدو ځان پوه کړه، د حکومتولۍ رازونه درمعلـوم کـړه او د الله تعالی په توکل پر مخ لاړ شه.

لـه داسـې مسـلمان سره دې مخـه ده، چـې د کفري نړۍ په شل کلن نړیوال غوبل کـې د ده رګ ونـه خوځېـد. کـلي، کورونـه، ودونـه، جنـازې او کاروانونه بمبار شول، دی ویده و!

جګړه بل چا پیل کړې، یرغل بل چـا کـړی، د نړۍ سپکې او درنې وسلې بل چا راچلولې، د نـړۍ سپکو او درنو وسلو پسې بـل څـوک ورک دی، خـو دروې یې پر تا..!!

کابـل اداره چغـې وهـې، چـې ولسـوالۍ پـه تبلیغاتو او سیاست نیول شوې، ستا مسـلمان وایـي، جګړه دې تېزه کړې!

داسـې مسـلمان دی، چـې مجـرم، تـوپکي، چرسي، بنګي، قاتل، غارتګر، فاحش، ظالم، جابر، نڅاګر، غلام، پرېوتی، پوچ، بد ژبی، او بې دینه ګڼي، خو ملا، عـالم، پوهـان، مسجد، مدرسه، د مدرسې طـالب، درنې کورنۍ، صالح انسـانان او د حساب زلمي یې توی‌وړي حساب کړي!

تکـره شـه، درپـاتې ده، نظـام بـه راولـې، چـې د "نظـام" اصطلاح پرې ټکی پر ټکي تطبیقیـږي، ځکه چـې تـه د نـړۍ ډالرو ورخ نه لرې، چې خولې ته یې ور واچـوې او بـې پـروا لاړ شې. ته به ځان پسې بیا دی پوهوې، چې "نظام" څه معنی؟

تغافـل، تجاهـل او تکاسـل بـه دې لـه داسـې پـاڼې څخـه ورغړوي، چې بیا به پر څوړ روان یې.. روان یې.. چې د زمکـې د رسېده به دې ارمان شي، راګرځېده دې پر ځای پرېږده..!

العیاذ بالله!

## جهاد في سبيل الله

**ابو درداء رضی الله عنه می‌فرماید:**

"ای مردم پیش از جهاد در راه الله سبحانه وتعالی اعـمال نیک انجام دهید؛ چرا که شما به واسطه اعمال خـود مـی‌جنگیـد نه ابزار جنگی.

جبیر بن نُفَیر می‌فرماید: "آنگاه کـه قـبرص را فـتح کـردیم، مردمش به خاطر ذلت و شکستی که دچار حال‌شان شده بـود می‌گریستند. چشـمم بـه ابـو درداء رضی‌اللهعنـه افتـاد کـه در گوشه‌ای نشسته و می‌گریـد! بـه او گفتم ای ابـو درداء در ایـن روزی کـه اللـه متعـال بـه اسلام و اهـل آن عـزت بخشـیده چـه چیزی تو را به گریـه انداختـه اسـت؟! ابـو درداء رضی‌اللهعنـه فرمود: "وای بر تو جبیر! آیا نمی‌بینـی آنگـاه کـه مخلـوق، اوامـر خـالق خـود را نادیـده مـی‌گیرنـد، تـا چـه حـد خـوار و ذلیـل مـی شوند؟! در حالی‌که این‌ها امـت زورمنـد، توانـا و غـالبی بودنـد، چون اوامر الله سبحانه وتعـالی را تـرک کردنـد چنـان شـده انـد که حال‌شان را می‌بینی!

# د شیخ الحدیث مولوي عبدالرشید مدني

# ژوند ته لنډه کتنه

لیکنه: صفي الله رائد

## زوکړه یې:

شیخ القرآن والحدیث پیر طریقت مولانا عبدالرشید مدني نورالله مرقده په کال ۱۳۶۸ ه ق د صفر المظفر په ۱۲ تاریخ د ننګرهار ولایت د شینوارو ولسوالی عبدالجلیل دره د نرګسو په کلي کې د لوی صوفي عالم شیخ اقا خېل په یوې دینداره کورنۍ کې زیږېدلی.

## زدکړه او تحصیل یې:

اروابناد شیخ الحدیث مولانا عبدالرشید مدني لومړنۍ دیني زدکړې پخپله کورنۍ کې د خپل والد صاحب نه او بیا د اچین ولسوالی چلګزي کلي د وخت نامتو او ممتاز عالم پیچ مولوی صاحب چې د کونړ د پیچ درې سره یې تعلق درلود ترسره کړې او ځینې منځني کتابونه یې د یو بل جید او مشهور عالم مولوی رحیم الله صاحب څخه وویلې چې بیا وروسته یې د نورو درسونو لپاره پاکستان ته لاړ او هلته یې اکثرو مشهورو مدارسو کې خپل درسونه وویل چې بلاخره دورة الحدیث یې په یوې مشهورې مدرسې مظهر العلوم مردان کې د نړۍ له مشهور او جید عالم شیخ الحدیث مولانا حمدلله جان ډاجوي صاحب رحمه الله څخه وویل او ۱۳۹۲ ه ق کې یې له همدې مدرسې څخه د دورة الحدیث فراغت ویاړ سند تر لاسه کړ.

## تدریس او اصلاحي فعالیتونه یې:

دا چې د شیخ صاحب له درس او تدریس سره له پخوا بې کچې مینه وه نو په وینا یې چې ما به د خپلې طالبۍ په دوران کې هم واړه کتابونه تدریسول، چې له فراغت وروسته یې ننګرهار کې هم ګنو طالبانو ته درس وکړ چې وروسته یې بیا د اسلامي امارت په دوران کې د ننګرهار ولایت د پوهنتون د رئیس په توګه څه موده خدمت ترسره کړ.

د اسلامي امارت تر سقوط وروسته د هجرت دیار پخپله مدرسه جامعه رشیدیه کې د محدث په صفت شاوخو لس کاله د طالبانو په روزنه بوخت و. شیخ صاحب به له حدیثو مبارکه وو سره دومره زیاته مینه درلوده چې کله کله به یې ویل: چې ارمان قبر کې مې هم د حدیثو درس کولای. شیخ صاحب رحمه الله د درس او تدریس ترڅنګ ډېر یو ښه مبلغ او مقرر هم و؛ د پند او نصیحت څخه ډکو خبرو به یې همیش زړونو کې لارې جوړولې.

## تزکیه او تصوف:

شیخ الحدیث مولانا عبدالرشید مدني رحمه لله د تزکیة النفس او د باطن د اصلاح په سلسله کې د مولانا محمد هاشم سمنګاني صاحب رحمه الله سره په نقشبندیه کې بیعت کړی و او په دې سلسه کې د هغه خلیفه هم و او په قادریه کې یې د خپل والد صاحب شیخ اقا خیل رحمه الله نه لاسنیوی کړی و او په چیشتیه او سروردیه کې یې بیا د مولانا عبدالسلام پیر سباق باباجي رحمه الله سره بیعت کړی و او د هغه خلیفه یې وقت هم و، چې په دې سلسله کې حضرت شیخ صاحب مدني رحمه الله هم ګڼ شمیر مریدان درلودل. شیخ صاحب عبدالرشید مدني رحمه الله د پیرسباق باباجي رحمه الله په خلفاو کې هغه ته ډېر منلی او تر ټولو نېږدې شخص و او د ګرانښت وجه یې هم د بدعاتو نه لرې والی او په بدعاتو باندې همیشنی رد کول و؛ ځکه چې مولانا عبدالرشید مدني رحمه الله به په د تصوف په سلسله کې په بدعاتو همیش سخت رد کاوه او نه بې پرېښودل چې څوک دې د تصوف دا پاکه او مبارکه سلسله په خرافاتو او بدعاتو باندې داغي کړي.

## جهادي مبارزه يې:

شيخ عبدالرشيد مدني رحمه الله د روسانو پر خلاف په مقدس جهاد کې هم يو له مهمو برخه والو څخه و. په هغه وخت کې شيخ صاحب د خالص بابا رحمه الله تر قيادت لاندې د روسانو خلاف په مبارزه کې برخه درلوده او د هغه يو برجسته قومندان هم و، چې د اسلامي امارت له راتګ سره بيا له دغه غورزنګ سره يوځای او د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تر قيادت لاندې يې يو ځل بيا په دې سپېڅلې مبارزه کې برخه واخيسته، چې وروسته بيا د اسلامي امارت د رهبري شورا يو مهم او فعال غړی شو چې په همدې سلسله د خدمت کې له دې واحد او متحد صف سره د ژوند تر پايه ملګری پاتې شو تر دې چې خپل روح يې حقيقي مالک ته وسپاره.




هو! شيخ صاحب عبدالرشيد مدنی رحمه الله ډېر حق ګويه، حق پرسته او رښتينی انسان و؛ په حق ويلو کې يې د هيچا پرواه نه ساتله؛ په صف کې يې له قوم پرستي او انډيوالېزم څخه ډېر بد وړل؛ تل به يې د جهاد په دې سترې او اغزنه لار کې مجاهدينو ته له خيرخواهۍ او نصيحت ډکې سپارښتنې او توصيې کولې؛ هميش به يې پخپلو خبرو کې مشرانو او کشرانو ته د توصيې په شکل ويل: چې مکافات او مجازات ډېر زيات ضروروي دي؛ په کوم نظام کې چې دغه اصل نه وي هغه ناکام او نيمګړی دی؛ فلهذا که مجاهدين په رښتيا کاميابي او نصرت غواړي نو حق بايد ورته له هر څه نه مقدم وي.

شيخ صاحب رحمه الله ډېر لوی فقيه و او د علم فقهې تر څنګ الله پاک ډېر لوی زکاوت هم ورکړی و؛ د رهبري شورا غړی محترم شيخ نور محمد ثاقب صاحب حفظه الله وايي: زه په ډېرو مجالسو کې ورسره ناست يم؛ کله به داسې يوه خبره راغله چې د خبرې ګنجايش به پکې نه تر سترګو کېده؛ ټول به حيران وو چې څه ووايو..؟ (مدني) رحمه الله به په خبرو پيل وکړ، يو ناشنا او بهترين تحليل به ويل کړ، تر دې چې ملګرو ته به يې د خبرې سر ور معلوم کړ؛ چې نظرونه به راغونډ شول؛ په پای کې به دده رحمه الله خبره تسلم شوه؛ دا د هغه لوی فقاهت او زکاوت و، کوم چې الله تعالی ده رحمه الله ته ورکړی و.

لنډه دا چې مرحوم شيخ صاحب رحمه الله د ګران هېوادا د ازادۍ او استقلال په هره مبارزه او مقابله کې خورا مهم او کليدي رول درلود؛ الله پاک دې ورته ټولې سعيې او تکليفونه قبول او منظور وګرځوي.

## شخصي ژوند يې:

سره له دې چې شيخ صاحب د هيواد په کچه يو ډېر لوی ولي الله او فقيه عالم و خو! ژوند يې ډېر ساده او له تکلفاتو لرې و، ډېر خاکسار، مينه ناک او زړه سوانده انسان و، د جمعې پابندي، ذکر، اذکار او په سنتو اتباع يې د ژوند له ځانګړيو صتفونو څخه وو. که به يې صحت جوړ و؛ د هر چا دعوت به يې مانه، په عام او درسي کال کې به يې خپل درس او تدريس کاوه؛ درس تدريس او عبادت يې د ژوند لنډه خلاصه ګرځېدلې وه؛ څکه خو به يې هميش ويل: چې دا مې ارمان دی چې په قبر کې مې هم د احاديثو مبارکه و درس کولای.

## تأليفات يې:

لکه څنګه چې شيخ صاحب له مطالعې درس او تدريس سره ډېره مينه درلوده؛ همدا رنګه يې له ليکلو سره هم خورا مينه وه. که



څه هم شيخ صاحب ليکلو ته ډېر کم وخت درلود خو بيا يې هم يو څه رسالې ليکلي کړي:

لومړی رساله يې « التحذير عن التسرع فی حکم التکفير » يعنی په يو چا باندې د کفر فتوی ورکولو تيزي نه کول. دويمه يې «فيوضات رشيديه» دريمه يې «تحريم الغناء و بيان اسماءهم علی التفصيل» څلورمه « اوصاف الحميدة والذميمة لسالك طريق الحق» پنځمه رساله «ښايسته دعاګانې او اذکار».

## د شخصيت په هکله يې د ځينو مشائخو تأثرات:

د رهبري شوراء غړی شيخ الحديث مولوی محمد اسماعيل رحماني دامت برکاتهم:

## د شيخ القران والحديث مولوی عبدالرشيد مدنی رحمة الله عليه وفات لويه ضائعه ده.

الحمد لاهله والصلاة والسلام علی اهلهما امابعد قال الله تبارک وتعالی. کل نفس ذائقة الموت الاية.

عن أبي الدَّرداءِ رَضِيَ اللهُ عنهُ قال: قال صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعلى آله وَصَحْبِهِ وَسَلَّمَ: «وَمَوْتُ الْعَالِمِ مُصِيبَةٌ لاَ تُجْبَرُ، وَثُلْمَةٌ لاَ تُسَدُّ، وَهُوَ نَجْمٌ طُمِسَ، مَوْتُ قَبِيلَةٍ أَيْسَرُ مِنْ مَوْتِ عَالِم.

## شيخ صاحب رحمه الله علمي جهادي سياسي شخصيت و.

متواضع سخي ميلمه پال او خوش طبعه او بې تکلفه عالم باعمل و، درس تدريس سره يې بې کچه مينه وه چې تر اخر د عمره يې سره ده ډير تکليف او مريضی د احاديثو مبارکو درس کول او خپل ټول ځامن يې عالمان کړي دي او لوی جهادي شخصيت و؛ د روسي يرغل په وخت کی يې تر اخره مسلحانه جهاد کې بې کچه قرباني ورکړی وی او د صليبي اشغال په مقابله کی له امارت اسلامي سره په کلکه ولاړ او هر قسمه قربانيو ته يې ملا ورکړه، د خپلې کورنۍ کسان يې د جهاد ميدان ته وليږل او په خپله به يې د امارت اسلامي مجالسو کی حاضري، ښې مشورې ورکولې او د مجاهدينو په روزنه کې به يې جهادي اصلاحي درسونو کې سره له تکليفه او مرضه حاضريده او د حق په مقابله کی يې د هيڅ چاپروا نکوله او د خپل مذهب حنفي يې په کلکه دفاع کړې او د خوارجو لامذهبو سره يې کرکه نفرت درلود او د شريعت پابند پير او مرشد و؛ په تصوف کی يی خورا ډيرمعلومات و چې د خپلو مريدانو اصلاح کونکی و او په شريعت مطهره باندې د عمل تلقين کونکی و.

خادم القران والحديث محمد اسمعيل رحماني

## د تحصيلاتو عالي اداري مسئول شيخ عبدالباقي حقاني صاحب:

د رسول الله ﷺ په نيابت او وراثت به تر قيامته د هر وخت علماء د خلکو لارښونه کوي او د رسول الله ﷺ په څېر به خلکو لپاره په اقتداء کې يوه بيلګه وي، د نبي کريم عليه السلام د وراثت دوه برخې وې: يوه برخه د دين په ساتنه او پلي کولو کې د رسول الله ﷺ نيابت او دويمه برخه يې د دين په رڼا کې د دنيا په سياست کې نيابت دی.

د تاريخ په اوږدو کې هغو علماوو بې سارې خدمت کړی چې د وراثت د دواړو ونډو وړتياوې يې درلودلې وي. او د وخت په اسلامي حکومتونو کې اغيزمن او رغنده کارکوونکی پاتې شوی وي او د مسلمانانو ددينې خدمت تر څنګ د دنيوي خدمت سرچينه هم ګرځيدلی وي، په خپله حاکمان وي او يا يې د وخت واکمنانو ته ګټورې لارښوونې او مشورې ورکړې وي.

اسلامي تاریخ ته په کتو په اسلامي حکومتونو کې دغو اهل حق علماوو چې د خپل وخت حاکمانو ته يې حق ويلی، حق ته يې بللي، د حق ملاتړ او ننګه يې کړې وي او په دې لاره کې يې بېلا بېل کړاوونه هم ګاللي وي او د حق په دفاع کې نه د چا تر اغېز لاندې راغلي او نه يې د حاکمانو څخه د دنیوي امتیازاتو تمه او توقع ساتلې او نه يې د څوکۍ او قدرت ددوام په موخه د ظالمو حاکمانو ملاتړ او مرسته کړې وي؛ د دا راز علماؤ بېلګه امام ابو یوسف رحمه الله، امام ماوردي رحمه الله، ابن جماعة رحمه الله او دې ته ورته نور علماء او د اوسني وخت يوه نمونه يې شيخ عبدالرشيد مدني رحمه الله و. په هر وخت کې دا رنګې علماء د ګوتو په شمېر وي نو له همدې امله مړينه يې هم د وخت د مشرانو، مخورو، لوړپوړو او عوامو لپاره په ټولنيز ژوند کې نه جبرانيدونکی نقصان وي، له همدې کبله د مولوي عبدالرشيد مدني مړينه په ځانګړې توګه د اسلامي امارت لپاره نه جبرانيــدونکی نقصان او تشه ده.

## په سياسي قضاياوو کې ژور نظر درلودل:

شيخ عبدالرشيد مدني رحمه الله په سياسي قضاياوو کې د خورا ډېر ژور نظر څښتن و؛ د کوم وخت راهيسې چې د امريکا سره د طالبانو خبرې اترې پيل شوې دي او د يوې موضوع اړوند به د امارت د مشرانو مجلس و؛ نو په هغه مجلس کې به چې کله حضرت مولوي صاحب کوم نظر وړاندې کړ ريښتيا هم چې هغه به ډير ژور و، په سياسي قضاياو کې د ژور نظر او پخې تجربې څښتن و؛ له همدې امله ډيرو مشرانو به د مشورې لپاره نوموړي شيخ صاحب ته مراجعه کوله او دده په مشوره به يې عمل کول.

## د حق وينا کول:

په اسلامي شريعت کې د حق وينا يو قيمتي جوهر دی، محترم شيخ صاحب کې د حق وينا دومره بې ساري ځواک شتون درلود چې په دې ميدان کې يې د ۱۴ کلن جهاد جهادي رهبرانو او قومندانانو ته هر وخت د حق وينا کړې او د اسلامي امارت په تيره او موجوده روانه دوره کې يې هم په هر مجلس کې د حق وينا کړې او د هيڅ چا تر اغيز لاندې نه دی راغلی او په همدې صفت ورسره د اهلِ حقو علماؤ ډيره مينه وه. رحمه الله رحمة واسعة

## وفات يې:

بلاخره د الله تعالی له قضا او تقدير سره سم دغه لويه هستي او ستر علمي شخصيت د۱۴۴۲ ه ق کال د ذی الحجې په ۲ د شپې لس بجې له دغې فاني نړۍ څخه د ابد لپاره سترګې پټې او خپل روح يې حقيقي مالک ته وسپاره.

روح يې ښاد او پر قبر يې بې شميره رحمتونه.

## توبه!

**جمهور علماء کرام د توبې د قبلېدو لپاره (او د توبې مفهوم) په مجموع کې څلور شيان/شرائط بيانوي:**

**۱- في الحال دغه ګناه پرېښودل.**

**۲- اينده کې يې د نه کولو کلک عزم کول.**

**۳- په تېر کې د ګناه په کولو کلک پښېمانه کېدل.**

**۴- که د بندګانو حق وي هغوی ته (يا يې وارث ته) رسول، که لمونځونه يې قضاء کړي وي د هغوی راګرزول....**

**خو ستر محدث عبدالله ابن مبارک رحمه الله د توبې مفهوم او د قبوليت لپاره يې يو بل شرط هم ذکر کوي:**

**۵- کوم بدن چې په حرام غټ شوی، هغه دې بېرته په خفګان او تکاليفو ويلې (او وړکی) کړي!!! او کوم خوندونه يې چې د ګناه په کولو حاصل کړي دي، په عوض کې دې خپل ځان د عبادت په کولو همدمره تکليف کړي. فتح الملهم.**

**الله دې په موږ ټولو رحم وکړي او الله نه به د خالصې توبې توفيق غواړو.**

## د شیخ عبدالرشید مدني صاحب له ځوی **مولوي انعام الله حقاني** سره د هغه د ژوند په باب د ځرک مجلې مرکه:



> مرحوم شیخ عبدالرشید صاحب ۲۴ ساعتونو کې ۳ نیم ساعته خوب درلود سهار او ماښام یې خوراک کاوه، نور وخت یې د عبادت، مطالعې او تدریس لپاره خاص کړی و

**پوښتنه.** جناب مولوي انعام الله حقاني صاحب د ړومبی پوښتنې په توګه که راته ووایی چې تاسې خو د شیخ صاحب مشر ځوی یی ټول څو وروڼه یی، نورو وروڼو مو درس او زدکړې ترکومه حده رسولې؟

**جواب.** الحمد لله موږ ټول شپږ وروڼه یو په دې کې موږ پنځه وروڼه هر یو مولوی انعام الله، مولوی رفیع الدین، مولوی سبحان الله، مولوی سعید احمد، مولوی زبیر احمد فارغان شوي یو او پخپله مدرسه رشیدیه کې تدریس کوو او کشر ورور مو شاهد احمد فی الحال طالب العلم دی سرکال یې وړه دوره ده پخپله مدرسه کې.

**پوښتنه.** مرحوم شیخ صاحب رحمه الله ستاسي د روحاني مربي، استاد او مرشد ترڅنګ ستاسې والد ګرامي هم وو؛ تعامل یې تاسې سره څنګه وو په مشخص ډول تاسې او خپلو نورو ارجمندانو ته یې هم درسونه ویل او د اصلاح او روزنې لپاره یې څومره وخت درکاوه؟

**جواب.** الحمد لله د والد محترم تعامل له موږ سره له وړوکوالي نه تر اوسه پورې ډېر بیساری او ښه و، ځکه ټول چلند او برخورد یې موږ سره اصلاحي او مشفقانه وو او خاصکر ددې ۲مبارکو احادیثو تر مصداق لاندې وو: قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: «لَا تَرْفَعْ عَصَاكَ عَنْ أَهْلِكَ». و قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مُرُوا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِينَ وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِينَ وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ».

موږ چې ماشومان وو نو مسنونه دعاګانې د قران کریم سورتونه او احادیث به یې رایادول. لمانځه او د جماعت به یې ډېر تاکید کاوه. که چاته به یې روپۍ ورکولې نو زموږ په لاس به یې ورکولې؛ ددې لپاره ترڅو موږ له سخا او ورکړې سره عادت شو. او په غټوالي کې یعني چې کله موږ بالغان شو؛ نو زموږ د روزنې لپاره یې وخت ټاکلی و؛ ځکه چې موږ به له والد محترم نه څومره هم طلب د تربیې او اصلاح کولو هغه به خوشحالیدو.

**پوښتنه .** که د شیخ صاحب مبارک د ۲۴ ساته تقسیم الاوقات باره کې څه معلومات راکړئ چې په خوب او استراحت سربېره یې د عبادت، تلاوت ریاضت، تدریس او مطالعې اوقات کوم کوم وو؟

**جواب .** د شیخ صاحب محترم په څلورویشت ۲۴ ساعتونو کې درې نیم ساعته خوب و او دوه وخته سهار او ماښام یې خوراک کاوه، نور وخت یې د عبادت، مطالعې او تدریس لپاره و چې تفصیل یې داسې دی:



د سحر له لمانځه تر اشراق پورې يې خپل وظائف کول، بيا به لږ ويده شو تر اتو بجو پورې، اته بجې به يې تحية الوضوء وکړ او بيا به که درس و لومړی به يې درس کاوه بيا به يې چای چيکه او که درس به نه وو نو ناشته به يې وکړه نور به يې تلاوت کاوه، په ورځ کې به يې يو منزل تلاوت کاوه په پنځو ورځو کې به يې قرآن کريم ختماوه.

بيا به يې د صلاة الظهر نه وروسته تر مازديګره مطالعه کوله، له مازديګر لمانځه نه وروسته به يې ختم خواجګان کاوه، تر ختم وروسته به مدرسه کې له ميلمنو او متعلقينو سره مجلس کاوه. د ماښام له جمعې وروسته به سيده کور ته ته او سنت او نوافل به يې کور کې کول، دينه وروسته به يې ډوډۍ خوړله او که کور کې به يې مجلس کاوه نو په همدې وخت کې به يې کاوه؛ ددې لپاره چې وخت ورنه ضايع نه شي نو بار بار به يې ساعت ته کتل. بيابه که ميلمانه وو نو له جمعې ۱۵ دقيقې مخکې به حجرې ته لاړ او که به څوک نه وو نو به د جمعې وخت کې مسجد ته تلو او تر جمعې وروسته متصل به کور ته راته؛ سنت به يې کور کې کول او تر اذکارو وروسته به يې مطالعه کوله تر ۱۱ بجو او بيا به ويده شو، بيابه تهجدو ته راپورته کيده او اکثر به يې تهجدو کې سورة بقره لوستله او ډېر اوږد لمونځ به يې کاوه او زيات به يې پکې ژړل، زما والدې بي بي راته ويل صاحب محترم دومره اوږده سجده کوله چې مابه ورسره اته نهه رکعته لمونځ کاوه. څنګ سره به يې د سترګو دوايي اينښې وه چې کله به يې سلام وګرځاوه نو دوا به يې سترګو کې واچوله؛ ځکه د زياتې ژړا له وجې به يې سترګې سرې شوې وې او خوږېدې به، د سبا راختو پورې به يې لمونځ کاوه او بيا به د جمعې تر وخت ناست و او د جمعې وخت کې به مسجد ته لاړ.

**پوښتنه.** شيخ صاحب ته به چې خلک ملاقات او صحبت ته راتلل له کومو خبرو او کړنو څخه به ځوريده؟

**جواب.** شيخ صاحب د دنيايي خبرو او په تېره د غيبت نه به ډېر ځورېده. شيخ صاحب سره د خلکو د اصلاح ډېر غم و او په همدې فکر کې به و چې څنګه په خلکو او ټولنه کې اصلاح راشي. دده مبارک بيانونه او وعظونه اکثر په اوامرو او نواهيو باندې بنا وو. ډېر تاکيد به يې په لمانځه او جماعت کولو او په اخلاص او اصلاح د نيت او دنيا سره په عدم محبت او همدا رنګه په استقامت او د سنتو تابعداري باندې وو.

مجاهدينو سره به يې ډېره مينه درلوده او دا به يې ډېره ارزو وه چې علماء مستغني وي او چا ته محتاج نه وي او چې کوم عالم به مالدارانو ته ورته نو دی به ډېر زيات خفه کيده علماو ته به يې ډېر تاکيد په درس او تدريس کاوه.

**پوښتنه.** شيخ صاحب خو په هر لحاظ حقدار او د لوړې مرتبې خاوند و په هيچا يې خبره بده نه لګيده، علمای کرامو، صوفيانو او مجاهدينو ته به يې مشخصې توصيې هم کولې؛ ستاسې که په ذهن کې وي او راته يې وايئ؟

**جواب .** مشرانو طالبانو او مريدانو ته به د کشرانو د صحبت نه په ځان ساتلو ډېره توصيه کوله د احاديثو مبارکه وو سره د ډېرې مينې له وجې يې طالبانو ته د حفظ الاحاديث توصيه

کوله او مجاهدینو ته یې په اصلاح د نیت، اتفاق او اطاعت د امیر او عدم خیانت ډېر تاکید کاوه.

**پوښتنه:** شیخ صاحب ته الله پاک د مسجد نبوي صلی الله عیه وسلم سره نیږدې د اوسیدا او په مسجد نبوي کې د ډیر وخت عبادت او خلوت موقع ورکړې وه که په دې باب لږ رڼا واچوئ چې شیخ صاحب هلته چیرته اوسیده، څومره وخت یې تیراوه او هلته یې د روحاني سکون، عبادت او ریاضت په باب څه تأثرات درلودل؟

**جواب:** شیخ صاحب په ۲۰۰۱ء کال کې خپله ځمکه خرڅه کړله او د سعودي عرب ویزه یې واخیسته چې بیا یې څوارلس کاله هلته تیر کړل، داسې چې شپږ میاشتې به مدینه منوره کې وو او شپږ میاشتي به بیا کور کې و، هلته به مدینې منورې سره نږدې شارع السلام په طرف کې اوسیدو، هر کال به حج ته تلو په داسې حال کې چې عمرې ته به ډېر ته. وروسته چې کله سعودي خپل قانون سخت کړ او دی هم کمروزی شو نو مونږ ورته وویل چې نور همدلته کور کې ښه یې او سفر مه کوه؛ نور مدینې منورې پسې به یې ډېر ژړل او د عمرې لپاره به یې پیسې را قرضولې خو هره روژه کې به عمرې ته خامخا ته، بیا به یې الله پاک هغه قرض هم زر خلاص کړ. په ۲۰۱۸ کال کې زه هم ورسره لاړم د صاحب به دا خاصیت وو چې په چا به یې بوج نه راووړ او تول تکلیف به یې پخپله ګاله، په مدینه منوره کې د شیخ صاحب د لغمان څه دوستان دي هغوی سره به اوسیده، هغوی سره به داسې اوسیده لکه خپل کور یې چې وي، هغوی یې هم ډېر خیال ساته، نو مونږ به د شپې دوی کره وو او سهار لس بجې به بیرته مسجد نبوي ته تللو، شیخ صاحب که څه هم ډېر کمزوری خو چې مسجد نبوي ته به چې لاړو نو به یې تحیة المسجد وکړ او بیا به یې په تلاوت شروع وکړه، مابه یوې ستنې ته ځای برابر کړ چې تکیه وکړي خو شیخ صاحب به تکیه نه کوله او نه به په جای نماز کښیناسته. نو چې د ماسپښین جمعه به وشوه نو د زوړ مسجد نبوي ساحې ته به لاړو، مازدیګر جمعې نه بعد به یې همدلته وظائف کول او بیا به تر ماښام همدلته کیناسو؛ ځکه له دې ځایه مو په شنې روضې سترګې لګیدې او همدا د شیخ صاحب د مازدیګر او ماښام د روژه ماتي معلوم ځای هم وو، که به څوک راتله هم دلته به ورته راتلل. کله به چې د ماسخوتن تراویح وشوې نو به شیخ صاحب روضې ته لاړ هلته به یې سلام وکړ او بیا به یې د شپې لپاره همغو دوستانو کره تلو.

**پوښتنه:** شیخ صاحب نورالله مرقده د تصوف په اړخ کې له چا څخه لاس نیوی کړی و او څومره درجې یې طی کړې وې او اوس به د اولیای کرامو کومو مزاراتو او خانقاوو ته ورته او د تصوف په ژوندیو صاحبانو کې څوک ډیرښه پرې لګیدل؟

**جواب:** شیخ صاحب د تصوف په سلسله قادریه کې د خپل والد محترم شیخ اقا خیل رحمه الله نه او په نقشبندیه کې یې د مولانا محمد هاشم سمنګاني رحمه الله نه او په چشتیه او سروردیه کې یې د مولانا عبدالسلام پیر سباق باباجي رحمه الله نه بیعت او خلافت اخیستی و. د شیخ صاحب ډېر تعلق له پیر سباق باباجي رحمه الله سره و؛ ځکه په ابتداء د هجرت کې مو کور هم هلته و او اوس هم یوه جمعه پس به خامخا هلته ورته؛ نو ډېر تعلق یې له پیرسباق صیب سره و.

**پوښتنه:** شیخ صاحب د تصنیف، تالیف په برخه کې څه لورینه کړي که درنولو ستونکو سره څه معلومات شریک کړی؟

**جواب:** لکه څنګه چې شیخ صاحب له درس تدریس او مطالعې سره مینه وه، همدا شان یې له لیکلو سره هم ډېره مینه وه؛ څه رسالې یې لیکلې چې یوه یې چاپ شوې او نورې یې ناچاپ پاتې، یوه رساله یې چې چاپ شوې « التحذیر عن السرع فی حکم التکفیر» یعنی په یو چا باندې د کفر فتوی ورکولو تیزي نه کول.

دویمه یې «فیوضات رشیدیه» دریمه یې «تحریم الغناء وبیان اسماءهم علی التفصیل» څلورمه « اوصاف الحمیدة والذمیمة لسالك طریق الحق» پنځمه رساله « ښایسته دعاګاني او اذکار».



# هغه نازولی شهید

نصيب ځدراڼ

هغه نازولی ماشوم؛ هغه ښایسته ماشوم؛ پر افغانستان د امریکا او ناټو یرغلګرو ځواکونو له یرغل څو میاشتې مخکې په خوست اسمعیل خیل مندوزی ولسوالي شمسي خیل کلي کې وزیږید.

هغه نوی زیږیدلی ماشوم په ورکوالي کې د پلار له شتون او سیوري څخه د یرغلګرو امریکایانو او ناټو ځواکونو بې برخي کړ.

د هغه شهید (عبدالحق عمري) پلار (مولوي محمد نبي عمري) د امریکایي یرغلګرو پوځیانو لخوا اسیر او د ګوانتنامو جهنمي زندان ته ولیږدول شو. د ځوانیمرګ شهید عبدالحق عمري پلار ۱۳ کلونه د ګوانتنامو دوزخي زندان شکنجې وزغملې. دیارلس کاله وروسته؛ هغه ماشوم چې د عمري صاحب د نیولو په مهال تازه دنیا ته سترګې رڼې کړې وې، تازه په ځواني راغلی، دنګ او ښایسته ځوان، خوله له خندا ډکه، له ګوانتنامو زندان څخه د راخوشې شوي زنداني مولوي محمد نبي عمري تر څنګ په قطر کې ناست و، هرکله به دا نازولی او د پلار په ژوند کې یتیم بلل شوی ماشوم؛ اوس د خپل پلار تر څنګ ناست و، هغه چې د پلار له مینې دیارلس کلونه بې برخې و، د تیرو ۱۳ کلونو مینه یې همدا وخت له خپل ګران پلار سره کوله.

نازولي شهید (عبدالحق عمري) د خپل پلار لاره تعقیب، د قطر ښکلي مانۍ، د شیراټون هوټل خوراکونه او مجلسونه، د بحر مستۍ، د شګو میلې، د لوکس موټرو ګرځول او هر څه یې د خدای ج د رضاء او جهاد په خاطر پریښودل.

دا ځوان، دنګ منار، مجاهد عبدالحق عمري د یرغلګرو د سي آی اې ملاتړو ملیشو سره د جګړې میدان ته ودانګل، هغه ځوان (عمري) چې د شهادت ارمانجن و، د خپلو پلرونو او مشرانو (شیخ هبة الله) (جلال الدین حقاني) د زامنو په پل قدم کیښود، هغه نازولي، د ۱۴۰۰ هـ س کال د زمري میاشت په ۴ نیټه د سي آی اې ملاتړو ځواکونو سره مخامخ جنګ کې د خوست ولایت نادر شاه کوټ ولسوالي زیړی سیمه کې شهید شو. او کوچنی محمد تري یتیم پاتي شو.

عسکرو جنګ کې تلفات لیدلي وو د دې پیښې د ځای نه ۱۰ کیلومتره لیرې بیرته د تګ پر وخت د شامبوت سیمه کې ۲ وروڼه محمد ایوب او نادان ګل چې د ظالف زامن ول په خپل کور کې په شهادت ورسول، عبدالحق د خپل تن وینې توی کړې خو د سې آی اې ملیشه یې پرېنښوده چې د طالبانو خط مات کړي.

د ژنیو قرباني او د طالب مشرانو حوصلې او صبر نړیوالو ته دا پیغام لري چې دا په دین او وطن مین ملت له یرغلګرو د هیواد ازادي د خپلو وینو په نذرانه کولو اخلي.

الله تعالی دې د شهید عبدالحق روح ارامه لري، د هغه نازولي د شهادت خبر وژړولم، له سترګو مې اوښکې وبهیدې.

خدایه دا نازولی شهید؛ خدایه دا ځوان شهید؛ خدایه دا مسافر شهید؛ خدایه دا د ګل پشان ښایسته بشر شهید،؛ خدایه دا خوبولی شهید؛ خدایه دا غیرتي شهید د انبیاوو، صالحانو، شهیدانو او هغوی په ډله کې قبول کړې چې تاسې ورڅخه راضي یاست.

جهاد او شهادت حقه لاره ده، زموږ د مشرانو او کشرانو همدا عقیده ده، چې پرته له جهاد او شهادتونو ازادي نه ګټل کیږي، موږ په خپلو ځوانو شهیدانو ویاړو، خدای ج به د دوی د وینو د قربانیو له امله هیواد ازاد او اسلامي نظام قایموي ان شاء الله.





# جګړه باید څوک بس کړي؟
## او عاملین یې څوک دي؟

لیکوال : نذیر هلال

له کله نه چې زموږ په پاکه خاوره افغانستان باندې د اشغالګرو څواکونو منحوس او ناوړه قدمونه لګېدلي، د اتلانو په دې پاکه خاوره غربي اشغال خپله توره لمن غوړولې، ورسره هم مهاله موږ له سترو چلنجونو سره مخ شوي یو، د سترو دجالي فتنو یو خړ سېلاب او توند توپان هم را الوتی دی، چې په نتیجه کې یې دا توپاني باد د ډېرو عقلونو لپاره د فالج ناروغي شوه، ډېر فعّال او د کار عقلونه له فعالیت او له کاره ولوېدل، مسخه او سرچپه شول، چې اوس حق ورته باطل او باطل ورته حق ښکاري!!! وکفی به فتنة.

هر څه چې اشغالګر، د هغوی اجیرې او کرایه شوې رسنۍ او د هغوی زیره خواره وایي/ویل هغه باید د حقیقت او واقعیت په توګه ومنل شي/شوي وی، که له واقعیتونو سترګې پټې نه کړو او له عقل نه کار واخلو؛ دې نتیجې ته به ورسیږو چې د دې ټولو بدبختیو ته زمینه سازي همدغو دجالي او کفري رسنیو وکړه، همدوی په ډېر ماهرانه انداز فحشا او عریانیت ته پرمختګ وواېه، په پراخه توګه یې وده ورکړه، غربي/کفري او پردی کلتور او فرهنګ یې ولس ته داسې تعبیر او انځور کړ لکه زموږ خپل افغاني او اسلامي فرهنګ، هغه یې د پرمختګ او ارتقا ضامن معرفي کړ او څوک چې اشغالګر، وحشي، ظالمان، پاټکیان، غلامان او د وطن پلورونکي وو هغه یې موږ ته په ډېرې سپین سترګۍ سره سوله ساتي، میلمانه، د انسانیت او ازدۍ علمبرداران او اتلان راوپېژندل.

خو دلته زه تنها په یوه خبره بحث کول غواړم، چې رسنیو یې حقیقت او ریښتونی مخ پټ کړی، په اصلي او حقیقي څېره یې د درواغو تور پړونی غوړولی او ولس ته یې سل فیصد بل رقم معرفي کړی دی، هغه دا چې ټوله میډیا، د ګوډاګي اداري مدیر په هره وینا کې او فېسبوکي خیاطان یې داسې فکر خلکو ته ورکوي لکه موجوده جګړه چې اول طالب پیل کړې وي او لکه (معاذالله) د اشغال په اوږدو کې د دې هرې بدبختۍ او ویجاړۍ لامل چې طالب وي، که چېرته بمبار کیږي، چاپې وهل کیږي، یا هم په پیل کې جګړه او اشغال رامنځته شوی او... د دې هرڅه مسئول او لامل طالب او د هغه مبارزه ده، چې د دوی د دې خبرې له کولو او هوا ورکولو هدف او مطلب دادی، که غربیان او د هغوی له لوري پړسول شوي غلامان هر څه کول/کوي او هرڅه یې خوښه وي (چاپې وهي، هر قسم ظلم او وحشت کوي، د اسلامي ارزښتونو او شعائرو سپکاوی کوي، زموږ ازادي ننګوي او...)، بیا دې هم دا هرڅه په مړو سترګو وزغمل شي، مخالفت یې جرم او د وطن د مصلحتونو په خلاف او تاوان ده؛ نو ځکه خو باید طالب اسلحه پر ځمکه کیږدي، له خپلې مبارزې نه لاس په سر شي، د حکمتیار په څېر تېل شوي نظام ته تسلیم شي او د خپلې وسله والې مبارزې علیا اهداف له سیاسي لارې لاس ته راوړي.

يوې خبرې ته مو بايد فكر وي، چې دلته بلكليه داسې هم نه چې دوی پوهيږي نه او يا هم ناخبره دي، چې د هرڅه لامل طالب بولي؛ بلكې دوی چې د دې رواني جگړې او هرې ناخوالې پړه په طالب ور اچوي، طالب د جگړې اصلي لامل بولي او له دوی نه د اسلحې كېښودل غواړي؛ نو د دوی دا خبرې له انصاف نه لرې دي او د دوی په ستر جهالت باندې دلالت كوي او كه څوک يې په شعوري ډول كوي(ټول يې كوي) بيا نو پرته له تجاهله بل هيڅ هم نه ده.

راځئ چې لږ په حقائقو وغړېږو! اصلا موږ د همدې كلي، وطن او خاورې اوسېدونكي يو، دا خاوره په مالكانه ډول زموږ ده او موږ يې اصلي مالكان يو، دلته موږ خاپوړې كړي، آن چې د دې مباركې خاورې د آب او هوا رنگ او تأثير زما په څېره كې معلوميږي، په لويو او بې حسابه قربانيو مو ساتلې او له ډېرو نورو سترو زبرځواكونو سره مو وربانډې ډغرې وهلي دي، دلته موږ يو مشروع، محكم او يو سپېڅلی اسلامي نظام درلوده، چې د اكثره افغانانو ملاتړ ورسره وو او په پنځه نوي فيصده خاوره يې حاكميت و، هيواد مو له تجزيې نه په ډېرو سختو حالاتو كې ژغورلی و، د ملوک الطوائفي سيستم مو ختم كړ، د ظلم او بد بختۍ كاسه مو نسكوره كړې وه، په نړيواله كچه مو داسې مثالي امن قائم كړی و، چې دوست او دښمن يې ټول تقدير كوي.

خو د نړۍ سوله ساتي ځواكونه په اشغالانه او ظالمانه توگه په ډېر كبر كې راغلل، زموږ د ولس او ارزښتونو په خلاف يې جگړه شروع كړه، زموږ په وينو او قربانيو جوړ شوی اسلامي نظام يې په ظالمانه توگه راړنگ كړ، د هيواد اصلي مالكان او بچيان يې د دهشتگر، القاعده او طالب په نوم شهيدان كړل، څوک يې د بگرام، گوانتنامو، پلچرخي او... وحشي او كرغېړنو زندانونو ته يوړل، شكنجه يې كړل، برقي شاټونه يې وركړل او نور قسماقسم ظلمونه يې ورسره وكړل، چې قلم يې د ليكلو او انځور كولو تاب نه لري



او څوک يې له خپل گران هيواد څخه هجرت كولو ته مجبور كړل.

د هېواد څو منحوسې څېرې، وحشي- او درنده صفته پاټكيان، د غرب او اروپا په كاسه رالوی شوي چې له اسلامي محكمې تښتېدلي وو، هغوی ته يې پتلون او ټايي وراچوله، د ډالرو او پيسو باران يې وربانډې وكړ، د ولس او زموږ په خلاف يې مسلح كړل او د خپلو نورو اهدافو د ترلاسه كولو لپاره يې له ځانه مخكې كړل او بيا يې د توپ، ټانگ او الوتكو په زور او وحشت په موږ او دې مسلمان، مظلوم او بې اسرې ولس باندې مسلط كړل او د سپيو په څېر يې ربښتوني مسلمانان او ازادۍ غوښتونكي وربانډې وداړل. دوی د خپل كبر په نيلۍ سپاره وو، زموږ د روغې جوړې وړانديزونه يې نه منل او په ډېر غرور يې په موږ اشغال تحميل كړ، موږ او ولس ته بله لاره او چاره پاتې نه شوه، ځمكه او اسمان راته اور او سره تبۍ شوه، د نجات او خلاصون يوازېنۍ لار راته له دې سترې اژدها سره مقابله او د فرعوني صفته نړۍ په مخ كې قيام او يو ولسي- پاڅون و؛ موږ مجبور وو چې د خپلو

ارزښتونو، خپلې حیاء او ابرو او د خپلې جغرافیې دفاع او ساتنه د سر او مال په قیمت وکړو.

که څه هم د دوی (ګوډاګیانو) په خبرو کوم باور نشته؛ خو همدا نن د امریکا مخلص پخواني ګوډاګي (کرزي) وویل: طالبانو سوله ییز ژوند غوښته خو امریکایانو مقاومت، شپنیو چاپو او ظلمونو وسله والې مبارزې ته اړ کړل... دلته د دې ستر غدار کرزي د خبرې له نقل نه زموږ مطلب دا نه ده، چې رښتیا هم موږ له اشغال نه وروسته د پهلنګ، ارام او د غلامۍ ژوند خوښاوه؛ بلکې صرف دا استناد مو ورنه وکړ چې جګړه پر موږ تحمیلي ده، دا جګړه موږ نه ده پیل کړې، هغه چا شروع کړې چې د زور له لارې یې د موږ ماتول او مسخر کول غوښتل، هغه چا پیل کړې چې په پردیو الوتکو، مزایلونو او ټیکنالوجي نازېدل، بلکې موږ ورته مجبور کړل شوي یو، بله لاره او بله چاره نه لرو او له موږ نه د جګړې بس کول غوښتل به ستره بې انصافي، حماقت/جهالت او یا هم تجاهل وي.

که دا اوس هم تاسې فکر وکړئ چې د جګړې اصلي عاملین، جګړه غوښتونکي څوک دي؟ د چا ګټې په ورانۍ او دربدرۍ کې نغښتې دي؟ د جګړې به ماته څه ګټه وي؟! کور کلی زما وران، هجرت او کلي پرېښودو ته زه مجبور، زنداي او شکنجه شوی زه یم، خپل خپلوان زما شهیدان او بالاخره مړ هم زهٔ پړ هم زهٔ!! جګړه کې د غلامانو ګټه ده، د هغه چا ګټه په جګړه کې ده، چې کورنۍ یې په غرب او اروپا کې خپل عیش او عشرت کوي او دی دلته له یوه بیګ سره راغلی او مسلط شوی، نو د همدې لپاره چې جګړه او اشغال ختم شي، د باور فضا جوړه او رامنځ ته شي موږ (طالبانو) سږکال بیخي پسرلني عملیات اعلان نه کړل، شیخ صیب حفظه الله د همدې تېر لوی اختر په پیغام کې په صراحت سره ویلي و: چې که د جګړې په میدان کې اګر که برلاسي یو خو بیا هم مذاکراتو او صلحې ته اولیت ورکو، د جنګ په وخت کې زرګونه نیول شوي عسکر یې له خرچې سره کورونو ته ولېږل او ... داسې نور هغه څه دي چې سولې ته زموږ پر ژمنتیا دلالت کوي.

خو بلې خوا ته که د غلامې ادارې د چوروکو هره یوه اعلامیه، هره یوه ناسته او غونډه ولیدلی شي، د جګړې د شدت او لا تمدید څرګندونې به پکې راغلې وي، د همدې لوی اختر په دویمه د کابل ادارې مشر. اشرف غني د قطعه خاص مرکز ته ورغی او د جنګ د تیزي امر یې ورکړ، له هغې یوه اونۍ وروسته په اصطلاح د کابل د ښارې ادارې د امنیتي دو دفاعي ځواکونو عمومي ویاند په یوه اونۍ کې د ۱۳۰۰ طالبانو د شهادت خبر ورکړ.

نو تاسې فکر او همدا تاسې فیصله وکړئ، چې څوک جګړه کوي، څوک وژنو ته خوشالیږي، څوک د صلحې خبرې او روانې هڅې سبوتاژ کوي، څوک یرغلګرو ته د جګړې او اشغال د دوام خطونه لیږي او زارۍ ورته کوي؟

دا اوس هم زموږ هغه شل کاله وړاندېنۍ خبره او دریځ دی، د ټولو مشکلاتو حل کول د خبرو له لارې غواړو، اشغال دې ختم شي، اشغالګر ځواکونه دې په بشپړ ډول زموږ له پاکې خاورې ووځي، دلته دې نړۍ زموږ په کورنیو چارو کې مداخله نه کوي او د افغانانو په خوښه دې یو سوچه اسلامي نظام قائم شي.

په پای کې خپلې خبرې په دې یوه خبره رانغاړم: دا ګوډاګیان له اشغالګرو سره راغلي ول، هغوی تغذیه او وپړسول نو اوس چې هغوی مات شول او کډې یې بار دي، دوی هم دلته زموږ په خاوره کې ځای نه لري ورسره ځي دي.
ان شاءالله هرڅه به نورمال او سم شي!

نه د شرق دی نه د غرب دی، نه د بل کوم یو غدار دی.
زه د دې خاورې مالک یم، دا وطن زما د پلار دی.

د یوه ازاد، خپلواک او اسلامي افغانستان په هیله.

* * *

افغان حکومت ولې ۲۰ کاله وروسته

# «الله اکبر» ته پنا وروړه؟

خالد م

د روان ۱۴۰۰ زیږدیز کال د زمري په ۱۱مه نیټه په هرات او بیا په ۱۲ نیټه په کابل کې یو شمیر ښاریان او دولتي کسان د شپې ۹ بجې واټونو ته را و وتل او د «الله اکبر» په ویلو یې له افغان حکومت او افغان ځواکونو خپل ملاتړ اعلان کړ. دغه شعار (نعره) د افغان حکومت په غوښتنه رامنځته شو او د حکومتي چارواکو او رسنیو له خوا یې سخت ملاتړ وشو. دا په داسې حال کې ده چې د افغانستان د ډیرو ولایتونو مراکز د طالبانو لخوا محاصره شوي دي او په یو شمیر ولایاتو کې سخته او مرګونې جګړه روانه ده. له دغو ولایاتو څخه، کندهار، هلمند او هرات هغه ولایت دي چې له شاوخوا درې اونیو را په دې خوا په سخته جګړه کې را ګیر دي او عام وګړو یې درانه مالي او ځاني تاوانونه ګاللي دي.

پوښتنه دا ده چې ولې کابل حکومت او سیکولر او ډیموکراتو مسئولینو له ۲۰ کلو وروسته هغه اصطلاح ته مخه کړه چې ۲۰ کاله یې ور سره جګړه وکړه. د دې کلمې ویونکي و وژل او زندان ته واچول. د دې شعار او اصطلاح د کارولو او کمپاین تر شا انګیزه څه ده؟ آیا کابل حکومت خپل اساسي فکر (سیکولریزم) او ایدیالوژی بدله کړې او اسلام ته یې مخه کړې، که تر شا یې نورې انګیزې او شوم اهداف پراته دي.

پیل د «الله اکبر» له وجودي فلسفې څخه کوو. ایا الله اکبر یوه تشه او وچه کلمه (اصطلاح) ده کې د یوه فکر، نظام او ایډیالوژۍ په معرفت دلالت کوي. په ژبني او لغوي لحاظ، د «الله اکبر» معنی دا ده چې الله سبحانه و تعالی له هر څیز، کس نه ستر او لوی دی، برتر او لوړ دی له هر هغه ډول وصف او تصیف څخه چې انسان یې د هغه په اړه په خپل ذهن کې مجسم کوي. ټول موجودات د هغه په وړاندې عاجز، محدود او مخلوق دي؛ دی (ج) نامحدود، حاکم، او مطلق قادر دی. دا لغوي او ژبنۍ معنی ده. خو په اصل کې «الله اکبر» د یوې عقیدې، ایډیالوژۍ او د نظام معرِف او سمبول دی. دا اصطلاح هغه وخت معنی پیدا کوي چې څوک د «الله اکبر» په مقتضا او محتوا ایمان او اعتقاد ولري. هغه دا چې د الله تعالی په شتون، وحدانیت، آخرت، رسالت، قرآن او داسې نورو مومن‌به باندې ایمان و لري.

خو که څوک «الله اکبر» یو تش لفظ بولي او د یوې سیاسي وسیلې په توګه یې د خلکو د تحریکولو او انسجام لپاره کاروي او د «الله اکبر» په مقتضی او ضمایمو نه ایمان لري او نه هم عمل کوي، دا نو بیا سیاسي منافقت او عوام فریبي ده. څوک چې د الله دین او دیني شعایر د خپلو مادي او سیاسي اغراضو او غوښتنو لپاره کاروي، په داسې حال کې چې قلباً په هغو ایمان نه لري، هغه د منافقینو په کتار کې راځي چې جزا او عذاب یې له کفارو څو ځله سخت دي.

د اسلام حدود او اصول ډیر واضح او روښانه دي. که هر مسلمان وغواړي او په اخلاص سره د اسلام

منابعو (قرآن، سنت، د اصحابو اجتماع او قياس) ته مخه کړي، نو دا درکولی شي چې د اسلام حدود او اصول کوم دي. اسلام په څه شي امر کړی او له څه شي يې منع کړې ده. د مثال په توګه، الله تعالی په تکرار سره په قرآن کريم کې د کفارو له دوستۍ څخه منع کړې ده. دا هغه څرګند حقيقت دی چې هيڅوک يې نه شي ردولی. په دې اړه خورا ډير نصوص شته چې زه د نمونې په توګه ورته ايشاره کوم: الله تعالی فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَتَّخِذُواْ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاء مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُواْ لِلّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَاناً مُّبِيناً . [النسا، ۱۴۴]

ژباړه: ای هغه کسانو چې ايمان مو راوړی، د مومنانو په ځای، کافران په دوستۍ مه نيسئ. آيا غواړئ چې د ځان په وړاندې الله تعالی ته واضح او پوخ دليل په لاس ورکړئ (چې تاسې هم د منافقينو له جملې ياست)؟

اوس راځو دې ته چې ايا کابل حکومت د «الله اکبر» غوښتنه پوره کړې؟ ايا افغان حکومت په الله اکبر او په هغه نظام چې «الله اکبر» يې ممثل او سمبول دی، ايمان او باور لري. تاسو خپله فکر وکړئ! موجوده نظام او د نظام مشران په ۲۰۰۱ز کال کې چې کله د کفري دولتونو سرلاري او مخکښ (د امريکا متحده ايالاتو) په افغانستان بريد وکړ او د طالبانو د هغه وخت نظام يې ړنګ کړ او په عوض يې د امريکا د (بي-۵۲) ډوله طيارو د بمبارد لاندې او د امريکايي او ناټو اشغالګرو ځواکونو په مټ اوسنی نظام جوړ کړ او لا تر اوسه د هغوی په سياسي، مالي او نظامي مرسته ولاړ دی. که يوه مياشت د کافرې امريکا او ناټو سازمان ملاتړ نه وي، نو د يوې مياشتې په در شل کې سقوط کوي او له منځه ځي. حاکم نظام او مشران يې د اسلام او د مسلمانانو تر ټولو سر سخت دښمنان دي. دوی د اسلامي نظام او د اسلام د تطبيق په مخ کې، اصلي مانعين دي. د دوی اصلي وظيفه دا ده چې پرې نه ږدي چې اسلام په افغانستان کې حاکم شي او د افغانستان مومن ولس د اسلامي نظام تر سيوري لاندې د امن او عزت ژوند وکړي.

د تعجب ځای دی! د اسلام په سلګونه افکارو او احکامو کې ولې افغان دولت په «الله اکبر» مين شوی؟ که کابل دولت منافقت نه کوي او له دې مقدسې کلمې څخه سياسي استفاده نه کوي، نو ولې بشپړ شريعت، حدود اوقصاص نه عملي کوي؟ حد اقل د غله او قطاع طريق لاسونه خو دې غوڅ کړي، که چرته په خپله خبره کې صادق وي؟ د کابل د ښار په واټونو کې هره ورځ په لسګونه کسان لوټل کيږي او قطاع طريق د خلکو لارې نيسي چې نه يې سر په امن دی او نه يې مال. که افغان حکومت منافق نه وي، نو حد اقل د کابل ښار کې د شته علني اخلاقي فساد مخه خو دې ډپ کړي. په تکرار سره د دولتي چارواکو د اخلاقي فساد رپوټونه خپاره نه شول؟ ايا خپله هغه ښځينه کارکونکو رسنيو سره د چارواکو د اخلاقي فساد او تيري چغې و نه کړې؟ څه شول هغه کسان؟ چا پرې د اسلام احکام تطبيق کړل؟ تر دې نور لوی او ښاره دلايل چرته دي.

کابل حکومت او مشران يې نور ختم دي. د دوی پښه ښويدلې او د سقوط ورځې شماري. دوی تر سخت نظامي فشار لاندې دي. نظام او چارواکي يې د ولايتونو په مرکزونو کې محاصره او مورال يې بايللی دی. اوس نو هرې وسيلې او حربې ته لاس اچوي چې ځان پرې وژغوري. فرق نه کوي چې دا کار د کفر له لارې کيږي که د اسلام. هره ورځ د کفارو مشر- دولت (امريکا) ته چغې وهي چې مرسته وکړئ او موږ وژغورئ. تېره مياشت مو وليدل چې ښځينه او نارينه يې متحده ايالاتو ته ولاړل او هلته يې له کافرې امريکا څخه په خورا ذلت سره مرسته وغوښتله چې موږ يوازې مه پريږدی. دلته د «الله اکبر» چغې وهل او هلته

بیا د «الله اکبر» له دښمن (امریکا او ناټو) څخه د مرستې غوښتنه؟ آیا تاسو په دې تناقض فکر نه کوئ؟ الله اکبر خو د اسلام نښه او شعار دی د کفارو په وړاندې. دا نو څنګه ممکن دی چې حق او باطل، کفر او اسلام دې دواړه په یوه ځای کې سره را ټول او جمع کړل شي؟

...فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ... [یونس، ۳۲]

ژباړه: آیا له حق پرته، ګمراهي نه ده؟

د پورته دلایل په پام کې نیولو سره، د افغانستان مسلمان ولس باید د افغان سیکولر او اسلام ضد دولت فریب و نه خوري او دا درک کړي چې دا یو سیاسي منافقت او سیاسي استفاده ده چې افغان حکومت یې د «الله اکبر» له سپېڅلې کلیمې څخه کوي. افغان حکومت په دوه جبهو کې جګړه روانه کړې ده، یوه د جګړې په عملي ډګر کې او بله په جمعي او ټولنیزو رسنیو کې. په اوسنۍ نړۍ کې چې څومره نظامي جګړه موثره ده، په همغه کچه فکري او فرهنګي جګړه موثره او ګټوره ده. نو ځکه کفارو او افغان دولت دغې جګړې ته کش ورکړی او مخته یې وړي. خو موږ باید د حکومت د سیکولرو حکامو منافقت او فریب درک کړو او فریب یې و نه خورو. ځکه چې له اسلام سره خپله دښمني او منافقت دوی په تېرو ۲۰ کلونو کې ثابت کړې دی او اوس هم په منافقت او فریب کې روان دي. اوس خو یوازې د «الله اکبر» کلمه کاروي، که قرآن کریم په غیر پورې هم و تړي، بیا هم په دوی باور په کار نه دی او د افغانستان مومن ولس باید د دوی فریب و نه خوري. که څوک د دوی د منافقت او مکر فریب خوري، نو دا د هغه کس په خورا سادګۍ او سطحي فکرۍ دلالت کوي. مومن باید ساده او سطحي فکره نه اوسي او د اسلام د دښمنانو د مکر او نفاق قرباني نه شي.



د رپوټونو او معلوماتو پر اساس د دوستم شپږ پوړیز قصر کې دطالبانو لاس ته ورغلې غنیمتونه:

۲۸ ترببه سوي اسونه

۱۲ ضد مرمۍ زري موټر

۳ زره میله کلاشنکوف او M۴ سلاح

۸۸ میله راکټ

۱۱۶ میله روسی پیکاه

۱۴ میله دهشکې

۲۸ عراده سیمرغ موټر

۵۶ موټرسایکل

* * *

# پوځي ډګر کې

## د ستر قائد پیغمبر ﷺ د فتوحاتو لاملونه

لیکوال : جنرال محمود شیت

دریمه برخه

ژباړه: م عبدالله اندړ

## عادلانه جګړه

### د عادلانه جګړې تعریف:

دا یوه داسې جګړه ده چې د یو ولس په وړاندې چې ظلم یې کړی وي، د بل ولس لخوا وړباندې کیږي، پداسې توګه چې ظلم کول یې مقصد نه وي بلکې انساني اصولو ته پکې ژمن وي او دائمي سولییز حل راویستلو په مقصد به وي، د ملکي خلکو شتمنیو ، ژوند ته به پکې احترام وي، له بندیانو او یرغمل شویو سره پکې غوره سلوک کیږي.

دا هغه تعریف ده چې د جګړې او شخړو لپاره په نړیوال قانون کې تر جګړییزو اصولو لاندې کنبل شوی.

(خو متاسفانه امریکایي اشغالګرو په افغانستان کې هغه قوانین چې خپله یې وضع کړي و، خپله تر پښو لاندې کړل، له ټولو اصولو خلاف یې یو ظالمانه یرغل سره د بې ګناه افغانانو په وینې تویې کړې، احترام خو لا پریږده؛ وې وژل ، وې ټکول او له هر ډول حقونو یې بې برخې کړل).

نو عادلانه جګړه یعنې دفاعي جګړه؛ نه دښمن پاله جګړه، چې هدف یې دائمي سوله وي، بشري اغراض پکې وي، د خلکو شتمنیو او ژوند ته پکې احترام وي، له بندیانو او یرغمل شویو سره ښه تعامل پکې وي.

څوارلس پېړۍ وړاندې په اسلام کې د جګړې شرطونه له هغه ډېر عادلانه و، چې نني نړیوال یې د دولتي قوانینو په مصادرو کې راوړي، پدې سربېره نه پکې قوم پرستي او وطنوالي شته، نه پکې ویاړ او افتخار تر یوې قبیلې پورې ځانګړی دی ، نه یې مادي غراض شته، نه استعماري، بلکې د فکر او عقیدې د آزادۍ ملاتړ کوي.

### ۲- د عادلانه جګړې په معنا کې تفصیل:

دفاعي جګړه : مسلمان په مکي ژوند کې قریشو د هغوی په ضد ، تر اخیري حده پورې ظلمونه وکړل او دښمني وپالله.

مسلمانانو ته د هغوی د مالونو او کورنیو پرېښودلو سیوا هیڅ لاره نه وه، هغوی اول سر کې حبشې ته هجرت وکړ ، بیا مدینې ته، دا یواځې د دوی د ظلم او تجاوز څخه د خلاصون له وجې و.

خپل اهل وعیال او مالونه پرېښودل له مکې نه د مسلمانانو هجرت کول یواځې د عقیدې د خوندیتوب لپاره و ، اکثرو مهاجرینو به چې نور مسلمانان په تعذیب کې ولیدل او ځینې نور هغه چې قریشو په تعذیب کې تر مرګه ورسول، هغوی ددغه خونړي حالت څخه د خلاصون لپاره هرڅه پرېښودلو ته مجبوره شول، تردې چې پیغمبر صلی الله علیه

وسلم پخپله له تکذیب ، اهانت سره مخ شو او د قریشو هغه دروغجنې ادعاوې او پروپاگندونه چې د هغوی او د نوي دین په خلاف یې کول ، په ډېر صبر سره اورېدلې او زغملې.

پېغمبر صلی الله علیه وسلم د قریشو له ډېرو مَحکمو دسیسو څخه نجات وموند، هغه چلونه چې دوی ورته د ترور لپاره په کار اچولي وو، دغه راز څنگه چې هغه صلی الله علیه وسلم مدینې ته دهغه په هجرت او ټول تکلیف او مشقت گاللو سره دهغوی له شرلو نجات وموند.

آیا لدې به هم نور پورته ظلم او تیری چېرته وي، کوم چې مکه کې له مسلمانانو سره وشو.

مگر پېغمبر صلی الله علیه وسلم چې مکه فتحه کړه قریشو ته یې وویل: (اذهبوا فأنتم الطلقاء) لاړ شئ! تاسې خلاص یئ !!

پېغمبر صلی الله علیه وسلم تر هغو پورې جگړه نه کوله چې هغه به مجبوره شوی نه و، د هغه ټول غزوات یواځې د بهرنیو تجاوزگرو لپاره غبرگونونه و او یا هم د داخلي تیریو او تجاوزونو نیت شنډول و.



هغه صلی الله علیه وسلم به چې کله هم دښمن سولې ته مائل ولیده، نو هغه به په ډېره بېړه په دغه میلان کې لا وهڅول، بیا به یې له دغه دښمن سره د تړونونو ته لاره هواروله.

د هغه صلی الله علیه وسلم د غزواتو څېړنه که په بې طرفه شکل سره او له هوا او هوس څخه لرې وي، دا ثابتوي چې مسلمانانو په هیڅا هم تیری نه دی کړی، ځکه چې : ان الله لا یحب المعتدین. الله تعالی تېري کوونکي نه خوښوي.

لکه څنگه چې دغه څېړنه ثابتوي چې مسلمانانو هیڅکله په هیچا باندې په زوره اسلام نه دی منلی او نه یې داخلولو لپاره کوشش کړی، که موږ سیرت وگورو د قریشو ډېر سړي د مکې له فتحې وروسته همداسې په خپل شرک پاتې و، دوی د پېغمبر صلی الله علیه وسلم سره په غزوه حنین کې گډون هم کړی و، مسلمانان پوهېدل چې دوی په خپل لومړنی

عقیده پاتې دي، خو سره له هغې یې په اسلام راوړلو مجبوره نه کړل، ځکه چې: لا إكراه في الدين. په دین کې په چا باندې جبر نه نشته.

له دغو کسانو څخه یو صفوان بن أمیه ، ابو سفیان بن حرب او کلدة بن الجنید و.

آیا مسلمانانو نه شوای کولای چې هغوی باندې په زوره اسلام راوړي، وروسته له هغې چې قریش ټول تسلیم شول، د مکې دروازې د هغوی په مخ خلاصې شوې.

دا خبره چې څوک کوي، چې په اسلام کې د جگړې هدف د اسلام خپرول دي، کمزورې او له واقعیت څخه لرې ده، بلکې په اسلام کې د جگړې هدف د دعوت (بلنې) حمایت کول دي، د اسلام دخپرولو حریت ملاتړ کول دي، د سولې او امن راوستل دي، خلاصه دا چې دواړه هدفونه ډېر سره لرې دي.

سره لدې چې تهاجمي جگړې ته دفاعي هم ویلی شو، ځکه چې له ظالمانه برخورد او عداوت پاللو څخه ډېره لرې وه، مگر لدې دفاع څخه د نن سبا په اصطلاحاتو کې په تعرضي دفاع سره تعبیر کیږي.

معنا دا چې مسلمانان د تیري او تجاوز په مقابله کې د یرغلگرو شړلو لپاره په مقابل هجوم سره له خپلو ځانونو دفاع کوي.



## ب: د سولې ټینگښت لپاره جگړه:

د مدینې مشرکانو او یهودانو مدینې ته د نبي علیه السلام له هجرت وروسته سولې ته میلان وښود، پېغمبر صلی الله علیه وسلم دغه سولییز میلان نور هم وهڅاوه او له دوی سره یې داسې معاهده لاسلیک کړه چې ټولې مدینې او اوسیدونکو ته پکې د فکر حریت او امن آزادي ور کړل شوه.

هر هغه قبیله چې په سوله کې یې دلچسپي او رغبت څرگند کړی و، نبي علیه السلام ورسره تړون لاسلیک کړ، لکه څنگه چې یې په غزوه (ودان) کې له بني ضمره و سره تړون

وکړ، په غزوه (العشیرة) کې له بنو مدلج سره او په غزوه حدیبیه کې له قریشو سره تړون وکړ.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د سولییزو اهدافو تحقق لپاره خپل ټول توان په کار اچاوه و لو که هغه ورته د ځینو ملګرو خفګان باندې هم تمامېده، څنګه چې دا په غزوه حدیبیه کې پېښ شول کله چې ځینو نږدې ملګرو یې نه غوښتل چې دا صلحه وشي.

واقعاً سوله استقرار تضمینوي، که موږ واقعیت ته وګورو د صلح حدیبیې چې د (اوربند او سولې) موده ګڼل کیږي، اسلام یکې په دومره لویه کچه د خلکو په منځ کې خپور شو، چې هغومره د جګړو په ورځو کې نه و خپور شوی، بلکې د جګړو د ورځو په نسبت څو چنده زیات خپور شو و.

سولې ته غاړه کیښودل خپله دینداري ده، الله تعالی فرمایي: وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ. [سُورَةُ الأَنفَال : ٦١] او [ای پیغمبره (صلی الله علیه وسلم)!] که دښمن د روغې جوړې خوا ته میلان ولري، نو ته هم د هغې لپاره تیار اوسه او پر الله توکُل وکړه.

نو دا دحیرانتیا وړ نه ده چې موږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم ګورو چې له دښمنانو سره هر ډول وړاندیزونه منې او حتی هغوی سولې ته هڅوي.

سوله په اسلام کې یو ثابت اصل دی او جګړه استثنائي حالت دی. خو اسلام سولې ته بلنه کوي، نه استسلام (تسلیمیدلو) ته، له هغه چا سره دښمني کوي، چې دښمني ورسره کوي، له هغه چا سره سوله کوي چې سوله غواړي.

نه پرچا تجاوز کوي، نه پر چا ظلم کوي او نه چاته پر مسلمانانو د ظلم او تجاوز اجازه ورکوي او نه وربانديې راضي کیږي.

## (ج) : انساني جګړه:

### لومړی : ملکیانو ته احترام :

پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ټولو غزواتو کې ملکي خلکو ته تلفات نه دي اړولي، د ملکیانو او بې ګناه خلکو د شتمنیو په ساتنه یې ټینګار کړی.

کله چې بنو قریظه تسلیم شول، مسلمانانو له هغوی څخه هغه سړي چې جګړه یې کوله، ووژل ځکه چې هغوی خپل عهد او تړون مات کړی و او د مسلمانانو ختمولو لپاره د هغوی له دښمنانو سره یوځای شوي و، مګر د قریظه و په ښځو او ماشومانو چا لاس هم پورته نه کړ، لکه څنګه چې هغه یهود چې هغوی پر خپلو وعدو پاتې وو، هغوی ته هم کوم تکلیف ونه رسېده.

ددغه قوم یواځینۍ ښځه چې ووژل شوه، هغه څوک وه چې یو مسلمان یې د بام له سره په ډبره ویشتی و، نو دا د خپل جنایت په بدل کې په سزا ورسېده.

کله چې مسلمانان غزوه مؤته ته وتل، نبي علیه السلام هغوی ته توصیه وکړه چې ښځې، ماشومان او ړانده ونه وژني، کورونه ویجاړ نه کړي او ونې پرې نه کړي.

د یوه مجرم بې ګناه کورنۍ ته سزا ورکول ظلم دی، دا د اسلام قاعده ده : (ولا تـزر وازرة وزر أخری) هیڅ پیټی پورته کوونکی د بل پیټی نه پورته کوي.نو لدې څخه هیڅ انکار نه شي کېدای.

### دویم: بندیان او یرغمل شوي:

مسلمانانو په غزوه بدر کې اویا تنه قریش اسیران کړل، نو ۷۸ تنه اسیران یې په صحابه وویشل، ورته وې فرمایل: استوصوا بالأساری خیراً . د بندیانو ښه سپارښتنه او ورسره نیک چلند وکړئ!

بیا یې شتمن بندیان د فدیې په بدل کې خوشې کړل، مګر نیستمن او فقیران یې څه بې بدله خوشې کړل او څه یې چې متعلمین و، ماشومانو ته په لیک لوست ښوولو مکلف وګرځول، هغوی یې څه وخت بعد ماشومانو ته له ښوونې وروسته پرېښودل.

خو پیغمبر صلی الله علیه وسلم د دوو بندیانو په وژلو امر وکړ، ځکه چې دوی د مسلمانانو په حق کې جنایتونه کړي و، بې وسه او کمزوري مسلمانان یې ټکولي و، د اسلامي شعائرو سپکاوی یې کړی و، نو دوی د خپلو جرمونو له مخې

ووژل شول، نه دا چې دوی بنديان و. دا دواړه بنديان ، په نوي اصطلاح (د جګړې نه بښونکي مجرمين ول) څه چې دوی کړي و، د همغو سزا وه.

لکه څنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه دوه بنديان په فديې پرېښوول چې د عبدالله بن جحش سريې (ګروپ) نيولي و، بيا يو اسلام راوړ او دويم يې په عزت سره مکې ته ستون شو.

دا هغه څه و چې مسلمانانو د بنديانو په حق کې ۱۴ پېړۍ وړاندې پلي کړي و، هغه د اوسني زماني قوانينو کې د بنديانو سره د سلوک خبره کيږي.

اما يرغمل شويو سره، په ټول تاريخ کې څوک نه شي ثابتولی چې ظلم دې ورسره شوی وي، ځکه چې يرغمل شوي امانت دي او د امانت په اړه آيت کې راځي:

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَخُونُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُوا أَمَٰنَٰتِكُمْ وأنتم تعلمون [سُورَةُ الأنفَال : ۲۷]

اې مؤمنانو! له پوهې او ادراك سره سره له الله او د هغه له پېغمبر سره خيانت مه کوئ. په خپلو امانتونو کښې خيانت مه کوئ!

## درېيم، زخميان او وژل شوي:

په غزوه بدر کې د مشرکانو څه بنديان په زخمي حالت کې ونيول شول، مګر مسلمانانو د خپلو زخميانو سره يو برابر د هغوی د زخمونو تداوي او ښه پاملرنه يې ورته وکړه.

په بدر کې مسلمانانو د دښمن مړي په ميدان کې لوځ او بې سرنوشته پرېنښودل بلکې هغوی يې دفن کړل .

اما احد کې مشرکانو بالعکس مسلمانان مثله کړل، پذې او غږونه يې ترې پريکړل او له شهيدانو سره يې ترټولو بد او شنيع وضعيت وکړ.

نور بيا ....

# د پخوانيو مجاهدينو پام چې بې ځايه استعمال نه شي!

م۔احرار

په ۲۰۰۱ کال کې ناټو او امريکا پر افغانستان يرغل وکړ؛ په زرګونه افغانان يې ووژل، هېواد يې ښکېلاک کړ او غربي ناوړه ارزښتونه يې پر افغانانو وتپل. امريکايانو د يرغل پر مهال له هوا بمونه ويشتل او پر ځمکه يې ځينو پخوانيو مجاهدينو ته منسوبو قومندانانو اوافرادو مرسته کوله او د خپلو افغانانو پر وړاندې يې د امريکايانو په ګټه جګړه کوله. په داسې حال کې چې يو وخت يې د کمونيستي نظام او شورويانو پر وړاندې په اسلامي انګېزه د اسلام د حاکميت لپاره جګړه کوله.پخوانيو مجاهدينوته منسوبو د ټولو اسلامي ارزښتونو خلاف د امريکا او د امريکايي دولت مرسته او ملاتړ وکړ. مګر په پايله کې کله چې امريکايانو په افغانستان کې د خپلې خوښې دولت ټينګ کړ؛ همدوئ يې په ناوړه نومونو يادول، د فساد دوسيې يې ورته جوړې کړې او بلاخره په خورا ناوړه بګروند سره يې له حکومت څخه يو پر بل پسې وشړل.

اوس چې د امريکايانو تر نسبي وتلو وروسته د ښکېلاک او غربي ارزښتونو يو ګوډ او مات سمبول (د اشرف غني پر مشرۍ حکومت) پاتې دی او د دوام هېڅ هيله يې هم نشته؛ متاسانه بيايوشمير پخواني جهاد ته منسوبي څيري له تېرو تجربو اوحالت څخه عبرت نه دی اخيستی او له خپلو تېرو تېروتنو يې توبه ګار ندی ، يو ځل بيا د خپلو مسلمانانو ورونو پر وړاندې په ښارونو کې د جګړې ډګر ته را دانګلي دي لکه تورن اسماعيل، قومندان عطا ياورته نور قومندانان

پوښتنه دا ده چې دوئ د کوم ارزښت، د چا لپاره او د چا پر وړاندې جګړه کوي؟ ايا د ډيموکراسۍ او جمهوريت لپاره جګړه کوي، په داسې حال کې دوی د اسلام د حاکميت لپاره راپورته شوي وو. ايا دوی د امريکا د حاکميت او تکنوکراتانو د حکومت د دوام او بقا لپاره جګړه کوي، په داسې حال کې د دوی په شل کلن حاکميت کې له فساد پرته بل څه نه وو. ايا دوی د خپلو هغو مسلمانانو ورونو پر وړاندې جګړه کوي چې دوی په تشو لاسونو تېر شل کاله د ناټو او امريکايي سرتېرو چې تر غاښونو پورې په سختو وسلو سنبال وو جهاد کاوه.

غوره دا وه چې پخوانيو مجاهدينو د جګړې پر ځای چې کېدی شي د زرګونو انسانانو د مرګ ژوبلې لامل شي، له مقابل لوري سره د تفاهم او الهي شريعت معيار ګرځولو لاره غوره کړې وی او په دې سره يې د يوې لويې فتنې مخه نيولی وئ. پای



## په مفتوحه ولایاتو کې د امنیت ساتلو او اداري نظم برابرولو په رابطه، مسؤلینو ته د اسلامي امارت مرستیال

## او د نظامي کمیسون د عمومي مشر **محترم مولوي محمد یعقوب صاحب مهمي سپارښتنې:**

السلام علیکم ورحمة اللّٰه وبرکاته !

اللّٰه پاک مو روغ جوړ ولره اللّٰه پاک مو وساته!

وروره! زما له طرفه د ټولو مفتوحه ولایاتو مسؤلینو ته خبره وکړه چې په ښارونو کې د نظم او ضبط ډېر خیال وساتئ، د خلکو د مالونو او ولس د امنیت لپاره زیات کوشش وکړئ، هغه مخکې چې کوم مکتوب د مشرتابه لخوا صادر شوی و؛ د هغه مکتوب په آساس د ښارونو امنیه قومندانئ فعالي کړئ، داسي چې د ولایتي کمیسونو مسؤلینو ته د کمیسون د مشرتوب ترڅنګ د امنیه قومندانۍ چارې هم ور وسپارئ، کوشش وکړئ چې دوی دغه کار ته متوجې شي، د کمیسیون د مسئولیت سره سره د امنیه قومندانۍ چارې هم ښه په جدیت سره ترسره کړي، چې د خلکو سر، مال او عزت وساتل شي، د هغوی مالونو، مارکېټونو، دوکانونو اونورو شخصي جایدادونو ته هیڅ ضرر ونه رسیږي.

که څه هم تراوسه خو الحمدللّٰه، کومه غټه تاواني پیښه نه لرو خو بیا هم مجاهدین باید متوجې وي، ترڅو په بازارونو کې دوکانونو، مارکېټونو، شفاخانو، بانکونو او نورو عامه تأسیساتو ته صدمه ونه رسیږي.

خلک دې د پخوا په شان خپل کاروبارونه روان کړي، د ښار د امنیت لپاره چې څومره مجاهدینو ته اړتیا وي؛ هغه دې د امنیه قومندان په واک کې ورکړي، هغوي دې د ښار امنیت ته متوجې شي، پاتې مجاهدین دې کمربندو او د جنګ ساحو ته ولیږل شي، که هلته ضرورت نه وو ورته، بیا دې له ښاره بهر په پوځي حکومتي ځایو کې لکه قول اردو، فرقې او لیواګانو کې ځای پرځای کړل شي، ترڅو د ضرورت په وخت کې بیا خپل کار مخته یوسي. نور د ښار د امنیت نیولو لپاره به دا معلوم کسان وي، له دې پرته دې نور خلک مداخله نه کوي.

دوهمه خبره دا ده چې د عامو خلکو او حکومتي کسانو کورنو ته دې څوک نه ورځي، چې د هغوی شخصي جایدادونو ته تاوان ورسیږي، مجاهدین دې قطعاً د حکومتي چارواکو او یا عسکرو کورونو ته نه ور داخلیږي بلکي د هغوی د حفاظت چارې دې ترسره کړي. بلکي مسئول مجاهدین دې بلنه ورکړي چې هغوی راشی خپلو کورونو او جایدادونو ته او دا دې پخپل واک کې واخلي مونږ د چا له کور، جایداد، دوکان او بل هیڅ شي سره غرض نه لرو.

له دوي سره زموږ دوښمني فقط په دې وجه وه، چې د اسلامي نظام مخه یې نیولې وه، اوس که یې له مخالفت او مقاومته لاس اخیستی وي، رادي شي خپلو کورنو ته، زموږ لخوا به ورته هېڅ تکلیف نه پیښیږي.

د بانکونو مسؤلینو ته ووایاست چې راشی خپل کاروبار پیل کړي، ستاسو له هېڅ شي سره زموږ غرض نشته، مونږ ستاسو محافظین یو، حفاظت به مو کوو او دولتي بانکونه دې مجاهدین په مکمله توکه په خپل واک کې وساتي، چې څوک زیان ورته ونه رسوي.

مسؤلینو مجاهدینو ته مې هدایت دا دی چې ولسي خلکو ته پوره اطمئنان ورکړئ، او زړونه یې را خپل کړئ، د هر قسم بې نظمۍ مخه ونیسئ، هرځای چې د کومي بې نظمۍ د پېښېدو خبره وي، مسؤلین دې سمدستي ورته رسیدګي کوي، حساس وخت دی، دوښمن له کوچنۍ نقطې څخه غټه تبلیغاتي استفاده کوي.

الحمداللّٰه، تراوسه داسې څه دوښمن ته په لاس نه دي ورغلي چې تبلیغاتي استفاده ځیني وکړي، خو بیا هم مجاهدین دې امنیت ته متوجې شي او هغه عسکر او چارواکي چې له امارت سره یوځای شوي، د سر او مال د امن ډاډ ورکول شوی؛ دغه شی دې مجاهدین په جدي توکه په نظر کې وساتي. چې تخلف او عهد شکني رامنځ ته نسي. والسلام

د اسلامي امارت مرستیال او د نظامي کمیسون عمومي مشر

مولوي محمد یعقوب مجاهد

۲۰۲۱/ ۸/ ۹م

# تقویم ١٤٤٣ هـ ق

د افغانستان اسلامي امارت

لا اله الا الله محمد رسول الله

١٤٠٠ - ١٤٠١ هـ ش

2021-2022 م

**د اسلامي امارت زعيم اميرالمؤمنين شيخ الحديث هبة الله اخندزاده حفظه الله :**

درنو هېوادوالو! د الله تعالی په نصـــرت مو کران هېواد د اشغال له تورې دورې
څخه ووت؛ راځئ په ګډه د افغانستان د متحد ساتلو، ودانولو او د سوچه اسلامي
نظام د نفاذ لپاره يو بل ته لاسونه ورکړو . (١٤٤٢هـ ق . د لوی اختر پيغام)

امریکایی‌ها به یاد داشته باشند که به نصرت پروردگار در افغانستان دچار شکست تاریخی خواهند شد، افغانان
بالای شان غلبه می‌یابند و آنان در همه تخمین‌ها و پلان‌های شان ناکام خواهند گردید . (پیام از طریق مخابره در سال ٢٠٠١م)

مؤسس امارت اسلامی افغانستان اميرالمؤمنين ملا **محمد عمر مجاهد** (رحمه الله)

مسؤلينو او مجاهدينو ! مونږ او تاسې جهاد د الله د رضا په خاطر پيل کړی، د خپلو قربانيو
بدله به هم له الله تعالی څخه غواړو، پام کوئ، چې پر چا د انتقام او غچ لاس پورته نه کړئ،
عفوه او بخشش د مجاهدينو برلاسی ده. (٢٠١۶م کوچنی اختر پيغام)

شهيد اميرالمؤمنين ملا **اختر محمد منصور** (نورالله مرقده)

Cell format: Hijri day (solar day · Gregorian day); columns run from the first week (rightmost on the page) to the last.

## محرم الحرام ١٤٤٣هـ ق — اسد - سنبله ١٤٠٠هش — August September 2021 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٥ (٢٣ · 14) | ١٢ (٣٠ · 21) | ١٩ (٦ · 28) | ٢٦ (١٣ · 4) |
| يکشنبه SUN | | ٦ (٢٤ · 15) | ١٣ (٣١ · 22) | ٢٠ (٧ · 29) | ٢٧ (١٤ · 5) |
| دوشنبه MON | | ٧ (٢٥ · 16) | ١٤ (23) | ٢١ (٨ · 30) | ٢٨ (١٥ · 6) |
| سه شنبه TUE | ١ (١٩ · 10) | ٨ (٢٦ · 17) | ١٥ (٢ · 24) | ٢٢ (٩ · 31) | ٢٩ (١٦ · 7) |
| چهارشنبه WED | ٢ (٢٠ · 11) | ٩ (٢٧ · 18) | ١٦ (٣ · 25) | ٢٣ (١٠ · Sep) | |
| پنجشنبه THU | ٣ (٢١ · 12) | ١٠ (٢٨ · 19) | ١٧ (٤ · 26) | ٢٤ (١١ · 2) | |
| جمعه FRI | ٤ (٢٢ · 13) | ١١ (٢٩ · 20) | ١٨ (٥ · 27) | ٢٥ (١٢ · 3) | |

## صفر المظفر ١٤٤٣هـ ق — سنبله - ميزان ١٤٠٠هش — September October 2021 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٤ (٢٠ · 11) | ١١ (٢٧ · 18) | ١٨ (٣ · 25) | ٢٥ (١٠ · 2) |
| يکشنبه SUN | | ٥ (٢١ · 12) | ١٢ (٢٨ · 19) | ١٩ (٤ · 26) | ٢٦ (١١ · 3) |
| دوشنبه MON | | ٦ (٢٢ · 13) | ١٣ (٢٩ · 20) | ٢٠ (٥ · 27) | ٢٧ (١٢ · 4) |
| سه شنبه TUE | | ٧ (٢٣ · 14) | ١٤ (٣٠ · 21) | ٢١ (٦ · 28) | ٢٨ (١٣ · 5) |
| چهارشنبه WED | ١ (١٧ · 8) | ٨ (٢٤ · 15) | ١٥ (٣١ · 22) | ٢٢ (٧ · 29) | ٢٩ (١٤ · 6) |
| پنجشنبه THU | ٢ (١٨ · 9) | ٩ (٢٥ · 16) | ١٦ (23) | ٢٣ (٨ · 30) | |
| جمعه FRI | ٣ (١٩ · 10) | ١٠ (٢٦ · 17) | ١٧ (٢ · 24) | ٢٤ (٩ · Oct) | |

## ربيع الاول ١٤٤٣هـ ق — ميزان - عقرب ١٤٠٠هش — October November 2021 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٣ (١٧ · 9) | ١٠ (٢٤ · 16) | ١٧ (٣١ · 23) | ٢٤ (٧ · 30) |
| يکشنبه SUN | | ٤ (١٨ · 10) | ١١ (٢٥ · 17) | ١٨ (24) | ٢٥ (٨ · 31) |
| دوشنبه MON | | ٥ (١٩ · 11) | ١٢ (٢٦ · 18) | ١٩ (٢ · 25) | ٢٦ (٩ · Nov) |
| سه شنبه TUE | | ٦ (٢٠ · 12) | ١٣ (٢٧ · 19) | ٢٠ (٣ · 26) | ٢٧ (١٠ · 2) |
| چهارشنبه WED | | ٧ (٢١ · 13) | ١٤ (٢٨ · 20) | ٢١ (٤ · 27) | ٢٨ (١١ · 3) |
| پنجشنبه THU | ١ (١٥ · 7) | ٨ (٢٢ · 14) | ١٥ (٢٩ · 21) | ٢٢ (٥ · 28) | ٢٩ (١٢ · 4) |
| جمعه FRI | ٢ (١٦ · 8) | ٩ (٢٣ · 15) | ١٦ (٣٠ · 22) | ٢٣ (٦ · 29) | ٣٠ (١٣ · 5) |

## ربيع الثاني ١٤٤٣هـ ق — عقرب - قوس ١٤٠٠هش — November December 2021 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | ١ (١٤ · 6) | ٨ (٢١ · 13) | ١٥ (٢٨ · 20) | ٢٢ (٥ · 27) | ٢٩ (١٢ · 4) |
| يکشنبه SUN | ٢ (١٥ · 7) | ٩ (٢٢ · 14) | ١٦ (٢٩ · 21) | ٢٣ (٦ · 28) | |
| دوشنبه MON | ٣ (١٦ · 8) | ١٠ (٢٣ · 15) | ١٧ (٣٠ · 22) | ٢٤ (٧ · 29) | |
| سه شنبه TUE | ٤ (١٧ · 9) | ١١ (٢٤ · 16) | ١٨ (23) | ٢٥ (٨ · 30) | |
| چهارشنبه WED | ٥ (١٨ · 10) | ١٢ (٢٥ · 17) | ١٩ (٢ · 24) | ٢٦ (٩ · Dec) | |
| پنجشنبه THU | ٦ (١٩ · 11) | ١٣ (٢٦ · 18) | ٢٠ (٣ · 25) | ٢٧ (١٠ · 2) | |
| جمعه FRI | ٧ (٢٠ · 12) | ١٤ (٢٧ · 19) | ٢١ (٤ · 26) | ٢٨ (١١ · 3) | |

## جمادی الاولی ١٤٤٣هـ ق — قوس - جدی ١٤٠٠هش — December 2021 م January 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٧ (١٩ · 11) | ١٤ (٢٦ · 18) | ٢١ (٤ · 25) | ٢٨ (١١ · Jan) |
| يکشنبه SUN | ١ (١٣ · 5) | ٨ (٢٠ · 12) | ١٥ (٢٧ · 19) | ٢٢ (٥ · 26) | ٢٩ (١٢ · 2) |
| دوشنبه MON | ٢ (١٤ · 6) | ٩ (٢١ · 13) | ١٦ (٢٨ · 20) | ٢٣ (٦ · 27) | ٣٠ (١٣ · 3) |
| سه شنبه TUE | ٣ (١٥ · 7) | ١٠ (٢٢ · 14) | ١٧ (٢٩ · 21) | ٢٤ (٧ · 28) | |
| چهارشنبه WED | ٤ (١٦ · 8) | ١١ (٢٣ · 15) | ١٨ (22) | ٢٥ (٨ · 29) | |
| پنجشنبه THU | ٥ (١٧ · 9) | ١٢ (٢٤ · 16) | ١٩ (٢ · 23) | ٢٦ (٩ · 30) | |
| جمعه FRI | ٦ (١٨ · 10) | ١٣ (٢٥ · 17) | ٢٠ (٣ · 24) | ٢٧ (١٠ · 31) | |

## جمادی الثانية ١٤٤٣هـ ق — جدی - دلو ١٤٠٠هش — January February 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٥ (١٨ · 8) | ١٢ (٢٥ · 15) | ١٩ (٢ · 22) | ٢٦ (٩ · 29) |
| يکشنبه SUN | | ٦ (١٩ · 9) | ١٣ (٢٦ · 16) | ٢٠ (٣ · 23) | ٢٧ (١٠ · 30) |
| دوشنبه MON | | ٧ (٢٠ · 10) | ١٤ (٢٧ · 17) | ٢١ (٤ · 24) | ٢٨ (١١ · 31) |
| سه شنبه TUE | ١ (١٤ · 4) | ٨ (٢١ · 11) | ١٥ (٢٨ · 18) | ٢٢ (٥ · 25) | ٢٩ (١٢ · Feb) |
| چهارشنبه WED | ٢ (١٥ · 5) | ٩ (٢٢ · 12) | ١٦ (٢٩ · 19) | ٢٣ (٦ · 26) | |
| پنجشنبه THU | ٣ (١٦ · 6) | ١٠ (٢٣ · 13) | ١٧ (٣٠ · 20) | ٢٤ (٧ · 27) | |
| جمعه FRI | ٤ (١٧ · 7) | ١١ (٢٤ · 14) | ١٨ (21) | ٢٥ (٨ · 28) | |

## رجب المرجب ١٤٤٣هـ ق — دلو - حوت ١٤٠٠هش — February March 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٤ (١٦ · 5) | ١١ (٢٣ · 12) | ١٨ (٣٠ · 19) | ٢٥ (٧ · 26) |
| يکشنبه SUN | | ٥ (١٧ · 6) | ١٢ (٢٤ · 13) | ١٩ (20) | ٢٦ (٨ · 27) |
| دوشنبه MON | | ٦ (١٨ · 7) | ١٣ (٢٥ · 14) | ٢٠ (٢ · 21) | ٢٧ (٩ · 28) |
| سه شنبه TUE | | ٧ (١٩ · 8) | ١٤ (٢٦ · 15) | ٢١ (٣ · 22) | ٢٨ (١٠ · Mar) |
| چهارشنبه WED | ١ (١٣ · 2) | ٨ (٢٠ · 9) | ١٥ (٢٧ · 16) | ٢٢ (٤ · 23) | ٢٩ (١١ · 2) |
| پنجشنبه THU | ٢ (١٤ · 3) | ٩ (٢١ · 10) | ١٦ (٢٨ · 17) | ٢٣ (٥ · 24) | ٣٠ (١٢ · 3) |
| جمعه FRI | ٣ (١٥ · 4) | ١٠ (٢٢ · 11) | ١٧ (٢٩ · 18) | ٢٤ (٦ · 25) | |

## شعبان المعظم ١٤٤٣هـ ق — حوت ١٤٠٠هش، حمل ١٤٠١هش — March April 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٢ (١٤ · 5) | ٩ (٢١ · 12) | ١٦ (٢٨ · 19) | ٢٣ (٦ · 26) |
| يکشنبه SUN | | ٣ (١٥ · 6) | ١٠ (٢٢ · 13) | ١٧ (٢٩ · 20) | ٢٤ (٧ · 27) |
| دوشنبه MON | | ٤ (١٦ · 7) | ١١ (٢٣ · 14) | ١٨ (21) | ٢٥ (٨ · 28) |
| سه شنبه TUE | | ٥ (١٧ · 8) | ١٢ (٢٤ · 15) | ١٩ (٢ · 22) | ٢٦ (٩ · 29) |
| چهارشنبه WED | | ٦ (١٨ · 9) | ١٣ (٢٥ · 16) | ٢٠ (٣ · 23) | ٢٧ (١٠ · 30) |
| پنجشنبه THU | | ٧ (١٩ · 10) | ١٤ (٢٦ · 17) | ٢١ (٤ · 24) | ٢٨ (١١ · 31) |
| جمعه FRI | ١ (١٣ · 4) | ٨ (٢٠ · 11) | ١٥ (٢٧ · 18) | ٢٢ (٥ · 25) | ٢٩ (١٢ · Apr) |

## رمضان المبارک ١٤٤٣هـ ق — حمل - ثور ١٤٠١هش — April May 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | ١ (١٣ · 2) | ٨ (٢٠ · 9) | ١٥ (٢٧ · 16) | ٢٢ (٣ · 23) | ٢٩ (١٠ · 30) |
| يکشنبه SUN | ٢ (١٤ · 3) | ٩ (٢١ · 10) | ١٦ (٢٨ · 17) | ٢٣ (٤ · 24) | ٣٠ (١١ · May) |
| دوشنبه MON | ٣ (١٥ · 4) | ١٠ (٢٢ · 11) | ١٧ (٢٩ · 18) | ٢٤ (٥ · 25) | |
| سه شنبه TUE | ٤ (١٦ · 5) | ١١ (٢٣ · 12) | ١٨ (٣٠ · 19) | ٢٥ (٦ · 26) | |
| چهارشنبه WED | ٥ (١٧ · 6) | ١٢ (٢٤ · 13) | ١٩ (٣١ · 20) | ٢٦ (٧ · 27) | |
| پنجشنبه THU | ٦ (١٨ · 7) | ١٣ (٢٥ · 14) | ٢٠ (21) | ٢٧ (٨ · 28) | |
| جمعه FRI | ٧ (١٩ · 8) | ١٤ (٢٦ · 15) | ٢١ (٢ · 22) | ٢٨ (٩ · 29) | |

## شوال المکرم ١٤٤٣هـ ق — ثور - جوزا ١٤٠١هش — May 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٦ (١٧ · 7) | ١٣ (٢٤ · 14) | ٢٠ (٣١ · 21) | ٢٧ (٧ · 28) |
| يکشنبه SUN | | ٧ (١٨ · 8) | ١٤ (٢٥ · 15) | ٢١ (22) | ٢٨ (٨ · 29) |
| دوشنبه MON | ١ (١٢ · 2) | ٨ (١٩ · 9) | ١٥ (٢٦ · 16) | ٢٢ (٢ · 23) | ٢٩ (٩ · 30) |
| سه شنبه TUE | ٢ (١٣ · 3) | ٩ (٢٠ · 10) | ١٦ (٢٧ · 17) | ٢٣ (٣ · 24) | |
| چهارشنبه WED | ٣ (١٤ · 4) | ١٠ (٢١ · 11) | ١٧ (٢٨ · 18) | ٢٤ (٤ · 25) | |
| پنجشنبه THU | ٤ (١٥ · 5) | ١١ (٢٢ · 12) | ١٨ (٢٩ · 19) | ٢٥ (٥ · 26) | |
| جمعه FRI | ٥ (١٦ · 6) | ١٢ (٢٣ · 13) | ١٩ (٣٠ · 20) | ٢٦ (٦ · 27) | |

## ذي قعدة الحرام ١٤٤٣هـ ق — جوزا - سرطان ١٤٠١هش — May June 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٥ (١٤ · 4) | ١٢ (٢١ · 11) | ١٩ (٢٨ · 18) | ٢٦ (٤ · 25) |
| يکشنبه SUN | | ٦ (١٥ · 5) | ١٣ (٢٢ · 12) | ٢٠ (٢٩ · 19) | ٢٧ (٥ · 26) |
| دوشنبه MON | | ٧ (١٦ · 6) | ١٤ (٢٣ · 13) | ٢١ (٣٠ · 20) | ٢٨ (٦ · 27) |
| سه شنبه TUE | ١ (١٠ · 31) | ٨ (١٧ · 7) | ١٥ (٢٤ · 14) | ٢٢ (٣١ · 21) | ٢٩ (٧ · 28) |
| چهارشنبه WED | ٢ (١١ · June) | ٩ (١٨ · 8) | ١٦ (٢٥ · 15) | ٢٣ (22) | ٣٠ (٨ · 29) |
| پنجشنبه THU | ٣ (١٢ · 2) | ١٠ (١٩ · 9) | ١٧ (٢٦ · 16) | ٢٤ (٢ · 23) | |
| جمعه FRI | ٤ (١٣ · 3) | ١١ (٢٠ · 10) | ١٨ (٢٧ · 17) | ٢٥ (٣ · 24) | |

## ذي الحجة الحرام ١٤٤٣هـ ق — سرطان - اسد ١٤٠١هش — June July 2022 م

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه SAT | | ٣ (١١ · 2) | ١٠ (١٨ · 9) | ١٧ (٢٥ · 16) | ٢٤ (23) |
| يکشنبه SUN | | ٤ (١٢ · 3) | ١١ (١٩ · 10) | ١٨ (٢٦ · 17) | ٢٥ (٢ · 24) |
| دوشنبه MON | | ٥ (١٣ · 4) | ١٢ (٢٠ · 11) | ١٩ (٢٧ · 18) | ٢٦ (٣ · 25) |
| سه شنبه TUE | | ٦ (١٤ · 5) | ١٣ (٢١ · 12) | ٢٠ (٢٨ · 19) | ٢٧ (٤ · 26) |
| چهارشنبه WED | | ٧ (١٥ · 6) | ١٤ (٢٢ · 13) | ٢١ (٢٩ · 20) | ٢٨ (٥ · 27) |
| پنجشنبه THU | ١ (٩ · 30) | ٨ (١٦ · 7) | ١٥ (٢٣ · 14) | ٢٢ (٣٠ · 21) | ٢٩ (٦ · 28) |
| جمعه FRI | ٢ (١٠ · Jul) | ٩ (١٧ · 8) | ١٦ (٢٤ · 15) | ٢٣ (٣١ · 22) | ٣٠ (٧ · 29) |